# ځرک

## اسلامي امارت ثابته کړه

چې د تورې او تفاهم ځواک او وړتيا لري !!

شپاړسم کال، شپږمه، پرلپسي ۱۱۹مه ګڼه،
عقرب - ميزان ۱۳۹۹ل، صفر المظفر ۱۴۴۲هـ ق، سپتمبر ۲۰۲۰م

دافغانستان اسلامي امارت د رهبري شورا غړي

محترم **ملا تاج مير جواد** سره د ځرک ځانګړې مرکه

- بين الافغاني مذاکرات او د ولس هيلې
- افغانان د اسلامي نظام غوښتونکي دي!!
- داسلامي امارت دمذاکراتي ټيم قوت او هيبت!
- د اسلامي حاکميت جوړولو کړنلاره!
- د تلې د ۶مې مخکې او وروسته

**بين الافغاني مذاکرات**

او دکابل واکمنانو زهرجن اظهارات

د پکتيکا ولايت محترم والي **مولوي محمد قاسم (خالد)** له ځرک سره ځانګړې مرکه کې:

د پکتيکا پنځه ولسوالۍ مکملې مفتوحه دي، د پنځو ولسواليو ۹۵ سلنه
او د نهو ولسواليو ۷۰ فيصده ساحه دمجاهدينو په واک او اختيار کې ده.

**دافغانستان اسلامي امارت**

د مذاکراتي ټيم د غړو لنډه پيژندنه

علمي، فرهنګي، ټولنيزه اسلامي خپرونه

# څرک

شپاړسم کال، شپږمه، پرلپسې ۱۱۹مه ګڼه، عقرب-میزان ۱۳۹۹ل،
محرم الحرام-صفر المظفر۱۴۴۲هـ ق، سپتمبر ۲۰۲۰م

امتیاز :

دا متیازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر : عبید تنویر

لیکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مبرزی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۵۰۰ کلداري |
| امریکا : | ۷۰ ډالره |
| اروپا : | ۷۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۳۰ افغانۍ<br>۶۰ کلداري |

یادونه

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي خانګه

پتې :

srak_111@yahoo.com

## لړلیک





سرمقاله

# اسلامي امارت ثابته کړه

## چې دجهاد او تفاهم ځواک او وړتیا لري!!

پر افغانســتان يرغل كوونكو هېوادونو دا فكر كاوه او كابل ادارې دا تبليغوله چې اسلامي امارت د تفاهم په نامه څه نه پېژني او نه هم باور پرې لري. دوى دا له پامه غورځوله چې همدا اسـلامي امارت و چې نږدې شـل كاله وړاندې يې په داســې حال كې تفاهم او د خبرو له لارې د هغه وخت د ستونزو د حل غوښتنه کوله چې نړۍ د قبر،وحشت اوزندان له انتخابونو پرته د بل څه حق نه ورکاوه.

د نږدې دوو لســيزو په جريان كې د برحق جهاد او مقاومت تر څنګ اسلامي امارت د تفاهم دروازه هم خلاصه پرېښــې وه. د اسلامي امارت دريځ دا و چې لومړى بايد د اشغال موضوع، چې دټولو ستونزو زېـږوونكې ده، حــل وفصــل شي او وروسته به بيا افغانان، د پرديو له مداخلې پرته، د خپل هېواد دراتلونكې نظام په اړه تصميم ونيسي .

د روان كال د حوت په ۱۰ مه په دوحه كې د اسلامي امارت او د امريكا د متحده ايالتونو تر منځ د تړون په لاسليک سره له هېواده د اشغالګرو وتلو ته زمينه برابره شـوه، اوس دا دى د هېواد دراتلونكي برخليک په اړه د افغانانو خپلمنځي تفاهم او مذاكراتو ته لار هواره شوې ده.

اسلامي امارت خودخوا او قدرت غوښونكى قوت نه دى او نه هم باور لري چې په يـواځې ځان دې د افــغانســتان دنجات او سوكالى لپاره پرېكړه وکړي .

د دې لپاره چې تر اشغال وروسته افغانســتان د افغانانو د ديني او ملي اقدارو ممثل، خپلواک، امن او سوكاله وي اړينه ده چې په بين الافغاني مذاكراتو كې ټولو جوانبو ته موقع او دنظرحق وركړل شي څو خداى مه كړه داسې پرېکړه ونشي چې د هېواد او ولس لپاره زيان ولري.

د بين الافغاني مذاكراتو لپاره د اساس په توګه د حوت د ۱۰ مې په تړون او په خبرو كې د اختلافاتو د حل لپاره د شــرعي مصــدر اومبنا په حيث په حنفي فقه ټينګار، له دې مذاكراتو راوتلې ثمره نوره هم مظبوطوي او تفاهم اسـانه كوي. دا معلومه خبره ده چې په دې مواردو ټينګار د كوم لوري د نفي كولو په معنا نه دي.

اسلامي امارت خپل ولس ته له خپل لوري پوره داډ وركوي چې د ملت ارمانونو ته به ژمن وي او هيڅ داسې پرېكړه به ونكړي چې د افغانستان مصـالح په خــطر كې واچــوي. مقابل جهت هم بايد په عمل كې ثابته كړي چې مذاكراتو او د تفاهم اصل ته ژمن دي او غواړي چې دا كشاله د اوږدولو پرځاى نوره حل وفصل وكړي.



موسی فرهاد

# د دوحې ترون ولې باید د اوسنیو مذاکراتو بنسټ وي...!؟

کله چې د طالبانو او زلمی خلیلزاد ترمنځ مذاکرات پیل شول، په اوایلو کې ډېر اختلاف د خبرو اترو پر اجنډا و، طالبانو به ویل چې فقط پر دوو موضوعاتو خبرو ته تیار یو، ( د افغانستان د اشغال خاتمه او له آینده افغانستان څخه چاته د ضرر نه رسولو اطمئنان).

خو امریکایی لوري به ویل چې نه، پر څلورو موضوعاتو خبري کیږي: دوه دغه پورتني شیان، درېیم د کابل له حکومت سره مخامخ خبري او څلورم اوربند.

دا خبره هم د کابل رسنیو ډېره بدرګه کوله او هم د کابل حکومت.

خو د طالبانو موقف له لویه سره داسي وو چې د افغانانو ترمنځ خبري کول، اوربند، نظام او یا نور مسایل زموږ کورنۍ خبري دي. له خارجیانو سره د مشکل ترحل کولو وروسته یې موږ پخپلو کې حل کول غواړو.

وروسته زلمی خلیلزاد ظاهراً په دې راضي شو چې بس پر دوو موضوعاتو به بحث کیږي، خو نتیجتاً داسي جوته شوه چې طالبانو او خلیلزاد دواړو یو او بل ته تر یوه یوه ټکي په لږ تغیر سره ور تیر سوي وي.

هغه دا چې اوربند د طالبانو په غوښتنه له اجنډا ووتی او د افغان حکومت پرځای له افغاني جهتونو سره خبره طالبانو ومنله.

د همدې جریان په رڼا کې مذاکراتي سلسله وغځېده، چې بالآخره توافق وشو، د مذاکراتي سلسلې په جریان کې که څه هم د کابل حکومت د خپل عادت سره سم هرسهار او بیګا ګډوډ مواقف اختیارول، خو په ټوله کې هغوی هم له امریکا سره په دې سلسله راضي وو او ملاتړ یې کاوه.

له همدې ځایه وه چې د شپږ زره بندیانو تبادله هم د کابل حکومت د دوحې د ترون په آساس ومنله، که څه هم په نخرو یې پریښودل، خو تبادله یې د همغه ترون له مخي وکړه، تر دې چې کله به یې زر یا سل تنه پریښودل، سمدستي به یې یو نیم اعلان هم کاوه چې اوس دې نو طالبانو خبرو ته راسره کښیني.

له دې نه علاوه د کابل مذاکراتي پلاوی، هم په همغه شرایطو غوره کړای شوی، چې د دوحې په ترون کې ویل شوي، چې د ټولو افغاني جهتونو استاځولي به کولای شي، یعني یواځې حکومت به نه وي.

مطلب دا چې د دوحې د ترون پر موادو د کابل اداري هم توافق او رضایت درلود، دا چې په زړه کې د امریکایانو پر وتلو خوښ و یا ناخوښه ؛ دا بیله خبره ده.

حقوقي خبره:

نو که چیري د طالبانو دا خبره؛ چې له امریکا سره یې فقط پر دوو موضوعاتو خبري کول غوښتل؛ په اول کې منل شوې وای؛ پر طالبانو ډېر فشار نه وای اچول شوی؛ چې ضرور به پرڅلورو موضوعاتو خبري راسره کوئ، او له امریکا څخه افغان حکومت هم دا غوښتنه مکرراً نه کولای؛ نو نن که د کابل حکومت د دوحې ترون ته ځان ژمن نه بللای، او د آساس په توګه یې نه منلای؛ نو په حقوقي لحاظ به دوی ملامت نه ګڼل کیدای؛ برعکس طالبان به مجبور وای چې له کابل سره د بل نوي ترون له مخي مذاکرات مخته بوځي. اوس چې له طالبانو سره د دوحې په ترون کې توافق شوی، امریکا، ملګرو ملتونو، امنیت شورا، اسلامي کنفرانس، د ۳۶ هیوادونو سفیرانو، د کابل حکومت، ګاونډیانو او نورو ټولو منلې چې پر دریو ټکو: چې په هغه کې له افغاني جهتونو سره د طالبانو خبري کول هم راځي؛ نو اوس لازماً باید چې همدغه ترون د راتلونکو ټولو پراوونو

لپاره آساس وي. زه فکر کوم چې په حقوقي لحاظ د کابل حکومت سل سلنه دې ته ملزم بلل کيږي. چې بايد همدا تړون د خبرو بنسټ ومني.

که چيري يې نه مني، بيا دوی پوه سه، بين المللي ټولنه او امريکا يې پوه سه. طالبان به له سره نوې پريکړه کوي چې د کابل له حکومت سره خبري وکړي، کنه؟ او که کوي يې؛ په کوم آساس يې وکړي؟ دا به د طالبانو خپل د خوښي آپشن وي، ځکه چې د دوحې له تړونه خو کابل قصداً د ځان ايستلو هڅه کوي.

مشورتي جرګه

دا چې اوس د کابل پلاوی دوې ضدونقيض خبري کوي، يو دا چې وايی د مشورتي لويې جرګې د پريکړو پربنياد به خبري کېږي، او بل وايی چې د امريکا سره امنيتي تړون لري او وروستۍ اعلاميه يې په ګډه ورسره صادره کړې؛ پرهمغه عمل کوو.

دا دواړې خبري ځکه بې آساسه دي:

(لومړی خو بايد وويل شي چې د کابل حکومت امنيتي تړون او وروستۍ مشورتي جرګه او يا داسي نور ټول کړه وړه، له لويه سره طالبانو په قاطعيت او صراحت سره پرخپل وخت مسترد کړي، آساساً يې منلي نه دي، لکه څنګه چې د کابل حکومت د دوحې تړون منلی وو.)

دويم دا چې مشورتي لويه جرګه خو د کابل حکومت د ځلور سوه بنديانو د برخليک او د هغوی د خلاصون د پريکړې لپاره را وغوښتله، اشرفغني ويل زه يې د خلاصون صلاحيت نلرم، لويه جرګه دې خلاص کړي. دوی خو په اول کې نه امريکا ته خبرداری ورکړی او نه يې طالبانو ته اعلان کړی چې دا مشورتي لويه جرګه د دې دپاره ده چې مورږ د دوحې تړون د بنسټ په حيث نه منو. ( سره له دې چې مشورتي جرګه يې دومره ناقصه وه چې حتی ډاکټر عبدالله پخپله هم مسترد کړې وه، نو حقوقي حيثيت يې خلک خپله هم ښه اټکل کولای شي.)

بل داچې دوی د امريکا سره د امنيتي تړون او يا وروستۍ اعلاميې صادرلو خبره کوي؛ هغه ادعا هم ځکه بېځايه بلل کيږي چې هغه تړون خو له وړاندي لا امريکا درسره مات کړی، امنيتي تړون خو د کابل حکومت د دې لپاره کړی و، چې امريکا به د تل لپاره يا د نامالومي مودې لپاره خپل نظامي حضور په افغانستان کې ساتي او د کابل حکومت په ملاتړ به ابدي جنګ کوي، مګر امريکا خو دا ده اوس خپل ځواکونه باسي، له طالبانو سره يې د خپلو قواوو د خروج معاهده لاسليک کړه. نو هغه تړون او يا د هغه د آپډيټ وروستۍ اعلاميه چې د ارګ او امريکايي جنرال لخوا خپره شوه؛ بنياد ګرځول خو په هيڅ صورت معقول او منطقي نشي بلل کيدای.

له همدې ځايه ده چې بايد د دوحې تړون د رواني بين الأفغاني مذاکراتي پروسې آساس وګرځول شي، يو خو به يې نړيوال ملاتړ نور هم پياوړی شي، ځکه اوس دا فورم ټولي نړۍ تائيد کړی، له نوي هغه سره د نړيوالي اجماع رامنځ ته کول بيا په کلونو کلونو وخت اخلي، له همدې لاري کيدلای شي د پروسې راتلونکي پړاوونه ډېر آسانه شي. او ګران هيواد ته مو تلپاتي سوله راشي.

پای..!

## د ښوونې ځانګړی اسلوب

#روايت_کا چې حسن او حسين رضي الله عنهما چرته بوډا سړی وليد چې اودس يې کوه، خو په سنت طريقه برابر نه و، د نبوت د مدرسې روزليو ځوانانو مناسب ونه بلله چې مشر او بوډا سړي ته ووايي: اودس دې صحي ونه کړ، بايد داسې او هاسې يې وکړې، نو دې مشر ته د صحي اودس ورښودلو لپاره يې د درنښت او هوښياري لاره برابره کړه.

دوی دواړو بوډا ته وويل مورږ دواړه ستا مخکې اوړسونه کوو، ته راته ګوره چې زما اودس په سنت طريقه برابر دی او که زما د ورور، زموږ فيصله به ته راکوې چې د کوم يوه اودس په سنت طريقه برابر ده.

بوډا ورته وويل: سمه ده، تاسو دواړه اودسونه وکړئ، هغوی دواړو يو په بل پسې اودسونه وکړل او بوډا دواړه څارل، هغوی چې کله اودسونه وکړل بوډا ته يې وويل اوس پرېکړه راوکړه، بوډا هم هوښيار سړی و، په حقيقت پوه شو او هغو دواړو ته يې وويل: ستاسو دواړو اودسونه په نبوي طريقه برابر دي، خو زما اودس په نبوي طريقه نه دی برابر. فيض القدير للمناوي(۳۲۸/۲)

# د اسلامي امارت مبارزه

## نورو اسلامپالو ته د لارې مشال

عبدالستار سعید

د افغانستان اسلامي امارت په داسې حال کې د اسلامي نظام دحاکمیت لپاره د مبارزې بیرغ پورته کړ، چې په اسلامي نړۍ کې د شلمې پیړۍ زیاتره اسلامي خوځښتونه د عروج له کنډو څخه د نزول پر خوا راغبرګ شوي وو .په مصر او اکثره عربي هیوادونو کې اخواني حرکت چې د واک تر لاسه کولو هڅې یې ناکامې شوې وې یوازې د پاېښت لپاره یې لاس او پښې وهل او خپل فعالیتونه یې له سیاسي هڅو په اجتماعي ـ رفاهي خدماتو بدلول .په بر صغیر کې د مولانا مودودي د فکري خوځښت هم کومه نغده پایله نه تر سترګو کیده .په الجزائر کې اسلامپالو ګټلی میدان سیکولرانو ته بایلود او په افغانستان کې چې کمونیست سیکولران مات شوي وو له بده بخته د یوه فکر) اخوان (او یوه مسلک ) انجنیرۍ (سره تړلي اسلامپال) مسعود او حکمتیار (د قدرت په جګړه سره کښیوتل چې په پایله کې د مبارزې دغه میدان هم د فتحې او نظام سازۍ د حماسې پر ځای د خپلمنځي جګړې پر غمیزه واوښت .

د شلمې پیړۍ په وروستۍ لسیزه کې د اسلامپالو خوځښتونو همدا بده ورځ وه چې فرانسوي مستشرق اولیو رای ته یې جرأت ورکړ تر څو ) د سیاسي اسلام شکست (تر عنوان لاندې کتاب ولیکي .اولیو رای ولیکل د شلمې پیړۍ له اسلامپالو خوځښتونو څخه یوازې د ایران د خمیني مبارزې رنګ راوړی او نورې مبارزې په شکست محکومې شوي دي.

د سیاسي اسلامپالو شکست بهرني او داخلي عوامل درلودل .له بهرنیو عواملو یې مهم هغه له دوهم جنګ جهاني وروسته نړیوال نظم و چې د امنیت شورى پنځو دایمي غړو هیوادونو په کې ټاکونکی رول درلود .دغه وخت چې مسلمانان د ټاکونکي فکتور په حیث د نړیوالو سترو لوبو له موقف څخه غورځیدلي وو، اسلام دښمنه زبرځواکونو په دې اجماع درلوده چې باید د نړۍ په هیڅ کونج کې سیاسي اسلام ته د حاکمیت مخه ورنکړل شي .

د داخلي عواملو له جملې مهم یې د ځینو اسلام پالو خوښتونو انحراف او له خپلو هغو مبادئو سره جفا وه چې په مټ یې دوی په اسلامي ټولنو کې اعتبار او مقام مونډلی و .د ډیرو خوځښتونو دوهم او دریم نسل هغه اهدف هیر کړل د کوم لپاره چې دغه خوځښتونه رامنځته شوي وو .

کله چې د طالبانو اسلامي تحریک راپیل شو که څه هم په پیل کې د اسلامي مبارزو ځینو سیالو خوځښتونو ورته په حقارت کتل او هغوی یې د یوه موسمي او نامنظم خوځښت په حیث تعریفول، اما د وخت په تیریدو ثابته شوه چې د دین

کارونه ډیر ځله تر قابلیت نه بلکې تر مقبولیت پورې اړه لري .په اسلامپالو مبارزو کې ظاهري ساخت و ساز دومره اغیزناک نه وي لکه اسلام او اسلامي اهدافو ته اخلاص او وفاداري چې د الله تعالی د نصرت او مؤمنانو د تائید سبب ګرځي.

اسلامي امارت له پیړیو وروسته یو ځل بیا د اسلامي حاکمیت لویدلی بیرغ راهسک کړ . پرته له اوږدو مقدماتو او سازماني سابقې یې نړۍ ته د اسلام د سیاسي اقتدار نغده بیلګه وړاندې کړه .د امیر المؤمنین، شریعت، اسلامي عدالت، حدود، قصاص، امر بالمعروف و نهی عن المنکر او اسلامي واکمنۍ نور هیر شوي مفاهیم یې راژوندي او عملي کړل .د الله تعالی پر ځمکه یې د الله تعالی نظام تطبیق کړ .او هغه باور یې غلط ثابت کړ چې په دې زمانه کې اسلامي نظام نه شي تطبیق کیدلای .

دا چې اسلامي مبارزې همیشه له ابتلاوو او ازمونونو سره مخامخ کیږي اسلامي امارت د نړیوال صلیبي یرغل له ابتلاء سره مخامخ شو .ټوله کفري نړۍ او ورسره د اسلامي هیوادونو ځینې نامرده واکمن د یوه پراخ یرغلیز اشر په لړ کې په افغانستان راغلل .خپل ټول جنګي توان، تبلیغاتي امکانات او استخباراتي دسیسې یې په کار واچولې تر څو د اسلامي حاکمیت هغه ډیوه مړه کړي چې وروسته له پیړیو یې مسلمانانو ته د بیدارۍ یو نوی احساس ورکاوه.

د اسلام دښمنانو خپل ټول توان وکاراوه .له زر، زور، تزویر او حتی زاریو پورې یې هیڅ وسله او وسیله پرې نه ښوده .خو اسلامي امارت د دښمن د دې پراخ تهاجم په وړاندې په خورا لوړه حوصله او متانت د اوږدې او صبر ازمویونکې مبارزې لاره ونیوله .

اسلامي امارت خپل مؤمن ولس له ځان سره وساته، ورسره یې د زمان او مکان اړتیاوو ته په پام سره ددیني علم او فقهې په رڼا کې د مقدس جهاد او څو اړخیزې مبارزې داسې لاره غوره کړه .چې بالاخره دا دی وینو چې هم یې په نظامي ډګر کې د ناټو په شان یو لوی یرغلګر د شکست په ژۍ درولی دی او هم یې په سیاسي برخه کې د یوه الهام ښښونکي جهادي ـ سیاسي خوځښت په حیث د عالم اسلام او اسلامي حرکاتو لپاره د بیلګې او ایډیال موقف د ځان کړی دی.

دا څو ورځې وړاندې چې د قطر په دوحه کې د اسلامي امارت استازي له خورا ویاړمن موقف سره په نړیوال سټیج د امریکایي زبرځواک غوندې له لوی طاقت سره د سیال اړخ په حیث مخامخ او د مایک پمپیو تر څنګ د ملا برادر اخند انځور رسنیز شو .که تاسو په سوشل میډیا کې د اسلامي نړۍ د بیلابیلو پرګنو اظهاراتو او تأثرات لیدلي وای نو ایله به درمعلومه شوې وای چې د شرق او غرب مسلمانان اسلامي امارت ته په کوم عقیدت قائل دي او مبارزه یې په څومره درنو کاڼو تلي.

د اسلامي نړۍ له شرق او غرب څخه اسلامپالو فعالانو د اسلامي امارت په اړه په دې د نظر اتفاق درلود چې دغه صف د دې عصر تقریبا یوازینی صف دی چې د خپلې مخلصانه، مدبرانه او عقلمندانه مبارزې په پایله کې بالاخره خپل هدف ته رسیدونکی دی .د دوی په باور د اسلامي حاکمیت لپاره دنړۍ په ګوټ ګوټ کې بیلابیلې مبارزې شوې او لا هم روانې دي .خو په دې مبارزینو کې اسلامي امارت څکه تر ټولو سرلوړی او بریالی دی چې هم یې

اشغالګر ځواکونه په نظامي ډګر کې مات کړي او يو ځل بيا يې د في سبيل الله جهاد په برکت مسلمانانو ته د اتلولۍ احساس ورکړی دی .دغه راز يې په سياسي ډګر کې هم ځان د يوه انکارناپذير حقيقت په حيث ثابت کړی دی .اسلامي امارت د دې په ځای چې له حالاتو سره ځان بدل کړي، د سيمې او نړۍ هيوادونو يې دې ته اړ کړي چې د اسلامي امارت په اړه خپل نظر بدل، په خپلو پاليسو له سره کتنه وکړي او له خپلو هغو مواقفو شاتګ وکړي چې پخوا يې د اسلامي امارت په وړاندې اعلان کړي وو .

دا چې اسلامي امارت د يوه جهادي صف په حيث څرنګه د بريا مزل لنډ کړ، اصلي سبب خو يې د الله تعالی نصرت دی چې اسلامي امارت ته يې په خارق العاده ډول د نړۍ د خورا ستر زبرځواک په وړاندې د پايښت، مقاومت او بالاخره بريا توان ورنصيب کړ .که د ظاهري اسبابو اړخ يې وګوره عمده وجوهات يې دا دي چې اول خو د اسلامي امارت کړنلاره د کوم شخصي فکر يا ځاني اجتهاد په اساس نه بلکې د اسلامي علم، حنفي فقهې او د امت د يونيم زر کلنې علمي ذخيرې په اصولو استواره ده .دلته مسائلو ته د کوم فکري مکتب يا معاصر اجتهاد له عينکو نه بلکې د ديني علم د درنو او مؤثقو منابعو له زاويې کتل کيږي او په همدې اساس ورسره تعامل کيږي.

بله دا چې اسلامي امارت خپل ولس او ولسي ارزښتونو ته هم په درنه کتلي .اسلامي امارت په افغان ولس کوم پردی او وارداتي فکر نه دی تحميل کړی .د ولس سره يې ګډه ژبه موندلې، د خپل مؤمن ولس اعتماد يې خپل کړی او ولس يې د جهادي صف تر شا د يوه کومکي او ريزرف ځواک په حيث بسيج ساتلی.

که مو پام وي د وروستيو لسيزو زياتره جهادي خوځښتونه په بې ځايه ټکرونو کې کمزوري او له منځه لاړل . اسلامي امارت د مبارزې په تاريخ کې هميشه خپل مشخص هدف ته متعهد او ځير پاته شوی .له مسائلو سره يې د اولويت بندي په اساس چلند کړی .خپل ځواک يې منسجم، متحد او په ټاکلو اهدافو مرکوز ساتلی دی .

اسلامي امارت د جوش او هوش تر منځ بيلانس تل رعايت کړی دی .مصلحت چې د اسلام يو ستر باب دی په خپل ځای يې لازمه استفاده ترې کړې .خو په مصلحت انديشي کې تر هغه حده نه دی اخته شوی چې خبره انحراف ته ووځي .

د اسلامي امارت مبارزه چې په خورا اغزنه لار يې بريمن سفر جاري ساتلی په دې ارزي چې په خورا دقيق ډول مطالعه شي. د اسلامي نړۍ په کچه اسلامي خوځښتونه په خاص ډول د تحقيق او مطالعاتو مراکز بايد په دې اړه پوره څېړنې وکړي .تر څو د دې اسلامي صف د بريا رازونه را څرګند او مسلمانانو ته تعريف کړي.

له شک پرته د اسلامي امارت مبارزه د دې وړ ده چې د اسلامپالو مبارزو لپاره د لارې مشال او يوه غوره بيلګه شي . راتلونکي نسلونه کولای شي په همدې پلونو د مبارزو سختې لارې ووهي او بالاخره د بريا تر منزله ځانونه ورسوي.



# بين الافغاني مذاکرات

## او دکابل واکمنانو زهرجن اظهارات

حسن مومند

انسانان ټول په فطري لحاظ ازادي خوښونکي دي خو په سم قدر يې هغه خلک زيات پوهېږي چې داشغال اوقبضو ناخوالې يې ليدلې وي؛ دازادۍ دترلاسه کولو لپاره يې هڅې کړې وي؛ تحريکونه يې چلولي وي او پدې لار کې يې قربانۍ ورکړې وي.

دتاريخ په اوږدو کې دافغانستان د اشغال په موخه دنړۍ سترو زبرځواکونو پدې خاوره ډېر يرغلونه کړيدي چې افغانانو يې په مقابل کې تل سخت مقاومت ښکاره کړيدی؛ دلويو قربانيو په بدل کې يې هر غاصب قوت ته ماتې ورکړېده او په شاېې تمبولی دی نوځکه افغانان د ازادۍ په قدر ډېر ښه پوهېږي اوپرې زيات خوشالېږي.

د امريکا په مشرۍ کې د انساني تاريخ تر ټولو ستر نظامي اتحاد چې په ۲۰۰۱م کال ټول افغانستان اشغال کړ نو پرې د مسلمان مجاهد اوپر ازادۍ مين افغان ملت غم او درد پرځای و خو دا مجاهد ملت نه ناهيلی و او نه د دې ستر زبرځواک دمادي اسبابو نه مرعوب و نو يې په خالي لاسونو دنړۍ ددې ستر مادي طاقت مقابلې ته را ودانګل.

ربښتيا دا ده چې زموږ خوښي له هماغه وخت نه پيل؛ هيلې مو را ژوندۍ او ځانونه مو کامياب وګڼل چې مو دعمل په ميدان کې د دښمن سره مقابله پيل او د جهاد دمقدسې فريضې نه د کېناستو او وروسته کېدو له ګناه نه الله تعالی وساتلو؛ هغه ګناه چې ورسره ډېر لوی تاوانونه تړلي دي.

امير المؤمنين او دجهاد نورمشران دنړۍ ددې ستر عسکري اتحاد دپرمختللوطيارو، توغندو، عصري وسلو، حربي وسايلو او ښو ډېرو مادياتو نه غافل نه وو؛ له دې هر څه خبر وو او پدې ښه پوهېدل چې داسلامي امارت مادي طاقت هيڅ ددې سترزبر ځواک سره دپرتله کېدو نه دی خو موږ ته دا يوه خبره هم نه رامخې ته کېده؛ بس که رامخې ته کېده نو هغه يواځې دا خبره چې اشغالګرو مو هېواد قبضه کړی؛ نظام يې را ړنګ کړی په زرونوخلک يې شهيدان کړي او زندانو ته بوتللي دي نو جهاد راباندې فرض دی.

ددې جهاد نتيجه به څه وي؟ جهاد به کامياب؛ اهداف به ترلاسه؛ دښمن به مات او اشغال به پای ته ورسېږي، که نه ؟

دا داسې پوښتنې وې چې په جواب يې موږ ځانونه مکلف نه ګڼل.

موږ دجهاد په پاک عمل ځانونه مکلف ګڼل نه يې په نتايجو.

هو! موږ دنتايجو په هکله مکلف نه وو خو دا مويقين و چې جهاد به مو کاميابېږي او دښمن به شکست خوري ؛ دا زموږ د درويش امير المؤمنين دخولې ګفت او دهر مجاهد دزړه اواز و.

دمسلمانانو دامېدونو سره سم الله تعالی پدې سپيڅلي جهاد اودې جهاد کې ورکړل شويو سترو قربانيو باندې نتايج مرتب کړل؛ مجاهدين دهرې ورځې په تېرېدو قوي شول او پر

دښمن د قوي ګوزارونو لـه امله د هـرې نـه بلې ورځې تـه د دښمن دشکست یقین په زیاتېدو شو تـر دې چې هغـه وخت هم راغلو چې ښه برملا امریکا او اتحادیانو یې خپل شکست ومانه او په ابرومندانـه ډول د افغانستان نـه د وتلو لپاره یې د اسلامي امارت نه دمذاکراتو غوښتنه وکړه.

د دښمن له لورې سولې ته دمایل کېدلو پرمهال سولې تـه میلان ښکاره کول د الله تعالی حکم دی نو ځکه اسلامي امارت دامریکـا دا غوښـتنه رد نکـړه بلکـې د خپلمنځـي ښـو ډېـرو مشورونه پس یې په عملي ډول دامریکا سره مخامخ دکېناستلو او عملاً دمذاکراتو کولو پرېکړه وکړه.

نړۍ ګومان کاوه چې دامریکا تجربه کار، لوبېدلي پاخه ډیپلوماتـان بـه پـه ډېـرې اسانۍ طالـب مشران وغولـوي او دخپلوغوښتنو نه به یې تېر کړي خودطالب مشرانو سره چې دالله تعالی مرسته وه اوپه ښه نیت او پاکه اراده یې مذاکرات کول نو همدا تجربه کار امریکایي ډیپلوماتان دې علماءو کابو ۱۸ میاشتې په مذاکراتو کې مصروف وساتل او څه یې چې ترې غوښتل هغه ټول یې پرې ومنل؛ لس، شل نـه بلکې خپل پوره ۵ زره قیدیان یې پرې را ازاد کړل اوامریکا دخپلو ځواکونو ویستلوته په غاړه ایښودو داسلامي امارت سره دهوکړه لیک امضاء کولو اراده هم څرګنده کړه.

دیاد هوکړه لیک لپاره دټاکل شوې نیټې له راتګ وړاندې په کورنیواو نړیوالو رسنیوکې پـه دې اړه پـه ښـه زوراوشـورسره بحثونه اوتبصرې روانې وې، له ځینو سره داباور هیڅ نه و،چې اسلامي امارت دې دکړو ژمنو سره سم پـه دې وتوانیږي چې دیـادې نیټـې لـه راتلـو وړانـدې دې دبـااعتماده چاپیریـال برابرولوپه ترڅ کې ټول هېواد کې اورکم پلي کړی شي خو چې کله دعمل میدان راغلو نوبیا ډېرژردهغوئ دغه دناباورۍ خطا ثابتـه شـوه،نړیوالواوافغان ولـس تـه جوتـه شـوه چـې پـه دې امتحاني اوونۍ کې په ټول هېواد کې داسلامي امارت دحکم نـه یوه وړه سرغړونه هم ثبت نشوه. دافغانستان داسلامي امارت په دومره پراخ تسلط، عملي نفوذ اوبشپړ حاکمیت دوستان او دښمنان دواړه حیران وو، هغوئ پـه لومړي ځـل ومنلـه چـې دامارت قیادت پخپلوجهادي اوسیاسي صفونو بشپړکنترول اوپوره واک لري

څومره چې دکب لسمه مه را نژدې کیـده، ورسره دنړیوالو دحیرانتیاووترڅنګ پر امارت د باورسلنه هم ډیریـده؛ د زیاترو سیاسي کارپوهانو خیالي اندیښنې، بې بصیرته وړاندوینې اوخطـاانګیزنې ناسـمې ختې،خـو بیـا هـم د ډېرومغرضـو اشخاصو،شـیطاني کړیـو، دقـدرت مینـانو، دمادیـاتو وګـو اودچوکیو مجنونـانوپر افغـان ولـس ددغـې سترې بریـا لیـدل پیرزو نه و، هغوی پخپل ټول وس هڅه وکړه څو افغانان له دغه تاریخي شیبو لیدلو محروم کړي

خـو داچـې دافغـان ولـس دنیکمرغیو دډک روښانه سبا راختـل حتمـي و،هیڅـوک یـې دراختوپـه وړانـدې مانع کیدای نشول،نو هماغه و چې دروان ۱۳۹۸ ل کال دکب میاشتې په ۱۰مه چې د۲۰۲۰ز دفورۍ ۲۹ مې نیټې سره سمون خوري دنړۍ په تاریخ کې دافغانستان اوافغانانو لویه ویاړنه او کارنامه ثبت شوه

او دامریکایي ځواکونو دوتلو او اشغال دپای تـه رسېدو تاریخي تړون رامنځته شو.

ددې تړون درامنځته کېدو نه لس ورځې پس باید پنځه زره بندیان ازاد او بین الافغاني مذاکرات رامنځته شوي وای خو دکابل پـر واک ناستو دقدرت مینانو دبندیانو د ازادۍ پـر وړانـدې خنډونـه رامنځتـه او دا پروسـه یـې د ډېـر ځنـډ سره مخامخ کړه؛ دوئ ددې پروسې دناکامولو ډېرې هڅې وکړې خو داسلامي امارت ژمنتیا؛ د ولس شدیدې غوښتنې او دبهر فشار لـه املـه ددوئ لـه لورې دبـین الافغـاني مذاکراتو پـر وړانـدې رامنځته کړي خنډونه له منځه ولاړل او بین الافغاني مذاکرات پیل شول چې دا د ولس لپاره د ډېرې سترې خوښۍ باعث وګرځېد اوهیلې یې پیداشوې چې د افغانستان څلوېښت کلنه جګړه به ختمه او هېواد ته به سوله او ارامي راشي.

خو داشرف غني اداري مشران چې خپل واک او مادي ګټې يواځې دجګړې په دوام کې ويني نو لا هم ددې پروسې دناکامولو هڅې کوي چې د اشرف غني د دوه معاونانو سرور دانش او امرالله صالح دتعصب نه ډکې جنګ ته لمن وهونکې تازه څرګندونې يې ښکاره دليل دی.

خواشرف غني او د کابل اداري نور مشران دې پدې پوه شي چې نور په بربنډو دروغو ولس نه شي غولولی او نه يې ورته دسيسې کومه ګټه رسولای شي؛ نه به پدې چال د ډېرې مودې لپاره په قدرت کې پاتې شي او نه به بهرنۍ نړۍ ورته کوم ارزښت ورکړي.

په هېواد کې سوله او امن راتلل حتمي دي ان شاء الله، سوله شايد وخنډېږي خوځوغلامان يې دخپل قدرت دبقا لپاره مخه نه شي نيولای.

دوئ چې دخپلو مادي ګټو لپاره ولس ته دقبضې دوام او ورسره تړلي لوی تاوانونه غواړي نو ورسره د ولس نفرت هم اوس اوج ته رسېدلی او داسلامی امارت محبوبيت په بې ساري ډول زيات شوی.

په ولس کې داسلامي امارت همدا محبوبيت اودعسکري قوت وسعت يې پرکابل اداري ورځ تربلې حلقه راتنګوي؛ په په نړيوالو رسنيو کې نشر شوي دا راپورونه به محترمو لوستوالو اورېدلي وي چې دکابل ټولې غاړې مورګې داسلامي امارت مجاهدينو نيولي دي چې ورسره دکابل اداري حالت ورځ تربلې بدترېږي.

امريکا اومتحدين يې چې په خپل ټول قوت خپلو استعماري اهدافو ته ونه رسېدل او ددوحې تړون لاسليک ته اړ شول ؛ دهغوئ دنه شتون په صورت کې به يې دلته غلامه اداره څرنګه دولس له ارادې خلاف په خپل نامشروع قدرت کې پاتې شي اوپه هېواد کې به دسولې اواسلامي نظام دراتلو مخه ونيسي؟

مور پدې ډېر ښه پوهېږو چې دکابل اداري نور په تمامه معنی اعتبار له لاسه ورکړيدی او د فوځي ځواک مورال يې دومره لويدلی دی چې نوريې دمجاهدينو په مقابل کې دمخامخ جنګ کولو توانمندي په کلي ډول له لاسه ورکړيده.

بل لورته دفاتحو مجاهدينو مورال ډېر قوي دی.

ننی پراخ سيمه ايز او نړيوال تحليل همدادی چې که دکابل اداري واکمنان روان سياسی اونظامي وضعيت سم درک نکړي ؛په سوله ايزه توګه دمسئلې حل ته خپله ژمنتيا ښکاره نکړي؛ اوسنی فرصت ضايع کړي نويقيني ده چې دسترې رسوايۍ سره به مخامخ شي.



## د افغانستان اسلامي امارت پیاوړی جهادي شخصیت

## او د رهبرۍ شورا غړی محترم

# ملا تاج میر جواد صاحب؛

**د افغانستان اسلامي امارت خپلواک دی، د سولې او جنګ په څېر ټولې مهمې پرېکړې په خپله کوي، د هیچا تر فشار لاندې نه دی، نه یې د چا فشار ته تر اوسه پورې غاړه ایښې ده.**

**لومړی پوښتنه**: تاسي په جریان کې یئ چې د قطر په مرکز دوحه کې بین الافغاني مذاکرات پیل او روان دي، تازه جریان که راته وواياست چې په کومو پړاوونو کې قرار لري؟

**ځواب:**

بسم الله الرحمن الرحیم، الحمدلله والصلاة والسلام علی رسول الله و علی من تبعهم و من والاهم و بعد:

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

اولاً: د ځرک د مجلې مدیره هیئت، ټولو کارکوونکو، مینوالو، خپل مجاهد ولس، د سنګر اتلو مجاهدینو، استشهادیانو او خپلو هغو ملګرو او دوستانو ته چې له ډیرې مودې راپدیخوا لیرې سره پاتې شوي یو، نیکې هیلې، سلامونه او احترامات تقدیموم، الله جل جلاله د وکړي چې ټول به روغ، جوړ او په خپلو شرعي امورو کې به بریالي یاست.

ثانیاً: هغه غم ځپلو کورنیو ته چې په دې وروستیو کې د امریکایانو او د دوی د ګوډاګیانو په بریدونو کې یې شهیدان ورکړي دي او یا یې د حق په لاره کې اتلو فرزندانو د شهادت جام نوش کړی دی او یا یې استشهادي اتلوال بریدونه ترسره کړي دي د تعزیت او تسلیت مراتب وړاندې کوم، الله جل جلاله دې د دوی شهادتونه په خپل دربار کې قبول کړي، الله جل جلاله د یې په جنتونو کې په عالیه مقامونو بانديې ونازوي او الله جل جلاله د تاسو ته صبر جمیل، اجر عظیم او نعم البدل درپه برخه کړي، الله جل جلاله دې د حق په لاره کې ټولو زخمي شوو مجاهدینو ته عاجله او کامله شفاء ورپه نصیب کړي.

ثالثاً: باید عرض کړم چې د تاریخ او روان سپیڅلي جهاد په دې حساسه مرحله کې د افغانستان د مجاهد ولس د ریښتیني آواز د انعکاس په برخه کې د ځرک د مجلې خدمتونه واقعاً د زیات قدر او ستایلو وړ دي، الله جل جلاله د په دې برخه کې د لا مزیدو خدمتونو توفیق ورپه برخه کړي.

اوس راځم ستاسو د پوښتنې ځواب ته:

تر دې دمه چې زه ستاسو مرکه ځوابوم په دوحه کې د دواړو لورو د مذاکراتي ټیمونو بحثونه د مذاکراتو لپاره په کړنلارې راټول دي، په ډیرو مواردو توافق صورت نیولی دی او تمه ده چې په پاتې مواردو به هم توافق رامنځته شي، بیا به

بحثونه د اجنډا په ټاکلو پیل کیږي او وروسته به اصلي مذاکراتو ته داخلیږو.

**دوهمه پوښتنه**: آیا واقعاً هم اسلامي امارت غواړي چې د خبرو او مذاکراتو په نتیجه کې هیواد ته امن او سلامتي راولي ، دا د اسلامي امارت آرزو ده که کوم بهرنی فشار؟

**ځواب**: د افغانستان د طالبانو اسلامي تحریک چې د جهاد او مبارزې په پایله کې یې اسلامي امارت رامنځته شو، په هیواد کې د ریښتیني امن او سولې لپاره د ولس ریښتینی غبر او غبرګون ؤ او د سولې او امن له پیغام سره یې خپل خوځښت پیل کړ؛ په هغه وخت کې یې د هغه انارشیزم او شر او فساد پر خلاف جهاد او مبارزه وکړه، کوم چې د افغانانو سوله او امن اختناق کړی ؤ؛ اوس هم زموږ جهاد او مبارزه د هغو عواملو د له منځه وړلو لپاره ده کومو چې له افغانانو څخه ریښتینی استقلال یرغمل کړی دی، ریښتینې سوله او ریښتینی امن یې تروړلی دی، هغه که زموږ جهادي مبارزه ده او که د نبوي شرعي سیاست په مبادي ؤ او اصولو ولاړه سیاسي مبارزه ده .

د افغانستان اسلامي امارت خپلواک دی، د سولې او جنګ په خیر تولې مهمې پریکړې په خپله کوي، د هیچا تر فشار لاندې نه دی، نه یې د چا فشار ته تر اوسه پورې غاړه ایښې ده، په دې برخه کې یې خپل ولس ته مکرر امتحان ورکړی دی، د افغانستان د اسلامي امارت یوه تر ټولو ستره آرزو په سوله، امن او سوکالۍ کې د افغانانو اوسیدا او ژوند دی.

**دریمه پوښتنه**: د کابل ادارې ته منسوب مذاکراتي ټیم وایي چې زمونږ سرې کرښې جمهوریت، دیموکراسي، د ښځو حقوق او د بیان آزادي ده، ستاسو له نظره اسلامي امارت څومره چمتو دی چې په دغسې کرښو له هغوی سره بحث او مجادله وکړي؟

**ځواب**: زموږ په نظر که تر هر نامه لاندې وي باید په هغه پردي فرهنګ، باورونو او مفکورو ټینګار ونشي چې په تیره یوه پیړۍ کې یې افغانانو په مقابل کې مبارزه کړې ده لکه کمونیزم او سیکولریزم او ځینې نور باطل افکار.

اصلاً په افغانستان کې د روان جنګ یو تر ټولو ستر عامل دا دی چې په افغانانو باندې د پردي فرهنګ، پردیو باورونو او پردیو مفکورو د تحمیل جبري هڅې کیږي، کورني او بهرني اړخونه پکې ښکیل دي او په مکرر ډول دغه تحمیل تجربه کیږي.

د افغانستان اسلامي امارت د افغانستان لپاره سوچه اسلامي نظام غواړي او یوازې یو سوچه اسلامي نظام کولای شي چې د انسانانو تر منځ اجتماعي اړیکې په ښه توګه تنظیم کړي او انسان د دې جوګه کړي چې د خپل خلقت مقصود وپیژني، تعقیب یې کړي، د ځمکې پر مخ د الله جل جلاله له لوري ورسپارل شوې دندې په ښه توګه سمبال کړي؛ فرد او ټولنه دواړه په یو بل له ظلم او تیري څخه راوګرځوي او په دې توګه تر خپل منځ ستونزې حل کړي.

همدغه راز په اسلامي نظام کې د یو لړ اصولو او شرایطو له مخې د ټولنې هر وګړی د بیان د آزادۍ حق لري او دا اصول او شرایط یوازې د دې لپاره دي چې د بیان آزادي یوازې د حق د اظهار او د خپلو حقوقو د اعادې او استحصال لپاره وګرځي او د یو مسلمان د عقیدې، شخصیت او حیثیت د سپکاوي د یوې وسیلې په توګه کار ترې وانخیستل شي، همدغه راز کوم حقوق چې ښځو ته اسلام ورکړي دي؛ که د هغو په رڼا کې په وضعي قوانینو کې د ښځو حقوق تر مطالعې لاندې ونیسو دې پایلې ته رسیږو چې دا حقوق نه دي؛ بلکه د ښځو په حقوقو تیری دی؛ ځکه ښځې په ټولنه کې د خپلې اصلي دندې څخه منحرفوي او د نرانو یوه ملعوبه یې ګرځوي او بس .

**څلورمه پوښتنه**: د کابل ادارې مشر، چارواکي او پلویان یې ټل خپل نظام او اساسي قانون د سیمې په کچه زیات اسلامي ګڼي؛ نو تاسو ولې په اصطلاح د دوی اسلامي جمهوري نظام، اسلامي نظام نه ګڼئ؟

**ځواب**: اسلامي شریعت د اسلامي نظام لپاره یو لړ مبادئ او اصول لري چې مهم یې دا دي : الله جل جلاله ته د حاکمیت اعلی مختص کول، اسلامي شریعت د تقنین د

يوازينی مصدر يا مأخذ په توګه منل او د اسلامي شريعت سره په ټکر کې د هيڅ قانون نه تسليمول .

کله چې يو نظام په دې مبادیو او اصولو استوار وي د سپيڅلي اسلامي شريعت له مخې اسلامي نظام ګڼل کيدای شي او کوم اساسي قانون چې د دې مبادیو او اصولو بشپړ رعايت ته ژمن وي، اسلامي قانون بلل کيدای شي، د کابل د ادارې په اساسي قانون کې حاکميت اعلی، الله جل جلاله ته نه دی مختص شوی؛ بلکه د ولس حق ګڼل شوی دی، د دې قانون د لومړي فصل په څلورمه ماده کې په صراحت سره دا مطلب ذکر شوی دی .همدغه راز د تقنين په مصدريت او مأخذ کې له اسلام سره وضعي قوانين شريک کړای شوي دي او اسلام د تقنين د يوازيني مصدر په توګه نه دی پکې منل شوی او دا موضوع د بن په تړون کې ) چې د کابل د ادارې د اساسي قانون اساس دی ( په صراحت سره راغلې ده، دې ته ورته په اوومه ماده کې د بين المللي قوانينو او اعلاميو د مطلق او له کوم قيد او شرط څخه پرته د رعايت ژمنه شوې ده، حال دا چې په ځينو اعلاميو کې د ارتداد په څير عمل مشروع بلل شوی دی او هر څوک پکې اجازه لري چې خپل دين بدل کړي؛ نو پايله دا شوه چې د دوی په قانون کې ارتداد مشروعيت لري او له کابل څخه د ځينو مرتدينو مصئون خروج د همدې مادې پر بناء ؤ، دا يې يوه بيلګه وه دې ته ورته نور ډېر موارد په نړيوالو تړونونو، قوانينو او اعلاميو کې شته چې دوی يې په خپل اساسي قانون کې بغير له قيد او شرط څخه د رعايت ژمنه ترسره کړې ده .

همدغه راز د نظام په مبادیو او اصولو کې چې کوم مواصفات د زعامت لپاره ټاکل شوي دي، له هغه صفاتو څخه يې ډېر د کابل د ادارې په اساسي قانون کې شتون نلري او نه يې زعامت هغه مواصفات لري، د کابل د ادارې په اساسي قانون کې تاسو هيڅ ځای هم د اسلامي شريعت کلمه نه شئ پيدا کولی، دوی هر ځای تنها اسلام ياد کړی دی، اسلام د دوی په نزد خاص تفسير او تعبير لري او يوازې يې په روح، عقل، ضمير او اخلاقو پورې منحصر ګڼي، د کابل د ادارې په اساسي قانون کې) ۱ ، ۲ ، ۳ ، ۳۵ ، ۴۵ ، ۵۴ او ۶۳ ( مادې چې د اسلام په اړه راغلې دي، چې دوی او د دوی علماء سوء ډېر حساب پرې کوي، دا ټول په اساسي قانون کې د اسلام په اړه زينتي مواد دي، عبارتونه يې پيچلي، پوښلي او محتمل دي او په دې مادو کې يوه ماده هم د هغه مبادیو او اصولو په باره کې نه ده راغلې او نه يې مفهوم افاده کوي چې اسلامي شريعت د اسلامي نظام لپاره ټاکلې دي.

سربيره پر دې د کابل اداره د اشغال په سيوري کې رامنځته شوې ده، د داسې اعمالو مرتکبه ده چې په اساس يې اسلامي شريعت له دوی سره جهاد او د دوی قتل واجب ګڼي، د افغانستان په پاکه ځمکه کې يې د فتنې، فساد او فحشاء خپراوي ته زمينه برابره کړې ده، د مسلمانانو وينه مباح ګڼي، هر ځای د مسلمانانو پر ضد د کفارو مرسته او د کفارو امنيت د خپلو امنيتي او دفاعي قواؤ مسؤليت ګڼي او وياړ پرې کوي، بناءً داسې يو نظام ته هيڅکله هم اسلامي نظام نشي ويل کيدای او نه يې قانون اسلامي قانون ګڼل کيدای شي .د کابل د ادارې مشر، چارواکي او پلويان چې د خپل نظام د قانون د اسلامي توب په اړه کومې څرګندونې، ادعاوې او تبليغات کوي دا يوازې د عامه ذهنيت د مغشوشولو، د شکونو د ايجاد او د ولس د تير باسلو لپاره کوي .

**پنځمه پوښتنه :** د کابل د ادارې مشران تل په خپلو بيانيو کې ټينګار کوي چې مونږ به هيڅکله سابق ته ور ونه ګرځو ، يا) بازګشت به سابق ( د منلو نه دی، معنی دا چې مونږ اسلامي امارت نه غواړو او نه پخوانيو زمانو ته ورګرځو ، د حاضر عصر له غوښتنو سره سم به نظام جوړوو او خپلې اتلس کلنې لاسته راوړنې به ساتو او دا لاسته راوړنې د يوې سرې کرښې په توګه تلقي کوي، که لطفاً د اسلامي امارت دريځ په دې هکله راته بيان کړئ؟

**ځواب :** که) بازګشت به سابق ( په دې معنی وي چې د عصر له ساينسي او علمي پرمختګ څخه دې استفاده ترک شي، د دې مونږ هم مخالف يو او داسې) بازګشت به سابق ( نه غواړو او که له) بازګشت به سابق ( څخه هدف د هغو الهي لارښونو ترک وي چې لوی الله جل جلاله څوارلس



سوه کاله دمخه د انسانانو د اجتماعي اړيکو د تنظيم، د انسان د خلقت د مقصد او د ځمکې پر مخ د الله له لوري انسان ته د سپارل شوې دندې د سمبالښت لپاره راليږلې دي؛ نو موږ د داسې) بازگشت به سابق (طرفدار يو او دا زموږ د ايمان او عقيدې برخه ده.

مونږ کله هم دا الهي لارښوونې د ديموکراسي په څير په هغو عقلي مفکورو نه شو تبديلولای چې د عقل د محدودې دايرې په اساس اختراع شوې دي، که د يو چا عقل د الله جل جلاله د لارښوونو حکمت ته نه شي رسيدلای دا دې ده د عقل کمزوري ده؛ نه د الله جل جلاله د سپېڅلو لارښوونو.

تاسې وګورئ !د انسانانو د اجتماعي اړيکو د تنظيم، د انسان د خلقت د مقصد او د ځمکې پر مخ د انسان د دندې د نوعيت او سمبالښت په اړه د عقل لارښوونې کله هم ثابتې نه و ، هروخت د تغير په حالت کې وي او دا تغير هر وخت په کوم منطق نه وي ولاړ؛ بلکه د هوا او هوس تابع وي.

پاتې شوه د اتلس کلنو لاسته راوړنو خبره !کومې اتلس کلنې لاسته راوړنې چې دوی يادوي دا بايد د اسلامي شريعت په اساس تفکيک شي، کومې چې د فتنې، فساد او فحشاء په زمره کې راځي موږ په کلکه دا مستردوو او مسترد به يې کړو او زموږ په اسلامي ټولنه کې چې کوم ويجاړې د دې له امله رامنځته شوې دي په ټول توان به د دې ويجاړې د ازالې کوشش وکړو؛ البته هر هغه څه چې د عصر له ساينسي او علمي پرمختګونو څخه واقعي استفاده ګڼل کيږي، زموږ د ټولنې له مصالحو څخه وي او له سپېڅلي اسلامي شريعت سره په ټکر کې نه وي هغه به لا تائيد او تشويق کړو .

**شپږمه پوښتنه**: ځينې خلک دا پوښتنه کوي چې طالبان په افغانستان کې څه ډول اسلامي نظام غواړي؟ د پاکستان په څېر؟ د ايران په څېر؟ د مصر په څېر؟ د سعودي په څېر ؟ او دوی دا هم وايي چې د اسلامي نظام يوه واحده بڼه نشته؛ نو که لطفاً دا راته وواياست چې تاسو کوم ډول نظام غواړئ؟

**ځواب**: د اسلامي شريعت له مخې اسلامي نظام خپل تعريف، خپل مبادئ او اصول او خپل ډولونه لري، موږ په اسلامي نړۍ کې موجود نظامونه د اسلامي شريعت په رڼا کې مطالعه کوو او موږ د اشخاصو، ډلو او هيوادونو د سليقو او افکارو له مخې د نظام نوعيت نه وړاندې کوو؛ بلکه د اسلامي شريعت د لارښوونو له مخې د نظام غوره ډول د خپل هيواد او خپل ولس له مصالحو څخه ګڼو، پاتې دې نه وي چې دا ډول پوښتنې څوک مطرح کوي هغوی د نظام په اړه د اسلامي شريعت له لارښوونو څخه يا ناخبره دي او يا زموږ مسلمان ولس ته د اسلامي نظام په اړه د شکونو د ايجاد په هدف دا پوښتنې مطرح کوي او د يو ډول تلبيس په هڅه کې دي.

**اوومه پوښتنه**: د کابل د ادارې چارواکي په خپلو څرګندونو کې د افغانستان اسلامي امارت له مخکينيو شاهي سلطنتونو سره پرتله کوي او ادعاء کوي چې د اسلامي امارت پر مهال افغانستان د يوې هديرې مثال درلود، نه خلکو آزادي پکې لرله او نه له حقوقو څخه برخمن وو، تاسو دوی ته څه ځواب لرئ؟

**ځواب**: اسلامي امارت د يو واقعي اسلامي نظام ممثل ؤ، زعامت يې د جيدو ديني علماء کرامو له لوري ټاکل شوی ؤ او ټاکل کيږي، مقتدره د رهبري شورئ يې درلودله او لري يې چې غړي يې د اهل حل او عقد له صفاتو او صلاحيتونو څخه برخمن دي، د زعامت په اړه تصميم نيسي او اهليت ته

په کتو د هیواد د هرې برخې وګړي پکې موجود دي .د زعامت ټولې ټاکنې هغه صفاتو ته په کتو ترسره کیږي چې په یو اسلامي نظام کې یې باید یو زعیم ولري، د مشروعیت اساسي سرچینې یې شریعت او شوری وه او ده، د اسلامي شریعت له مخې د نظام لپاره په ټاکل شوو مبادیو او اصولو ولاړ ؤ او ولاړ دی، سوچه اسلامي دستور یې تدوین کړی ؤ چې تر توشیح پورې د امریکایي اشغالګرو د حملې له وجهې ونه رسیده.

ریاست الوزراء او کابینه یې درلودله چې د یو حکومت ممثله وه چې خپل ولس ته یې ټول اړین خدمات سرته رسول، رئیس، مرستیالان، د کابینې وزیران او والیان د اهلیت پر بناء ټاکل کیدل، په منظم او نا منظم ډول یې په پراخه کچه له ولس سره د دوی د) نماینده ګانو ، قومي مشرانو او جهادي شخصیتونو (په توسط د مرکز، ولایتونو، ولسوالیو او قریو په کچه تماس او مشورې درلودلې .په هر ولایت کې یې د جیدو دیني علماء کرامو یوه شوری تشکیل کړې وه چې د ولایتونو چارې یې له نیږدې څخه څارلې، فیصلې په شرعي محاکمو کې ترسره کیدلې، د سمع شکایاتو کمیسیون به ولایت په ولایت او ولسوالۍ په ولسوالۍ ګرځیده، د مسؤلینو په اړه به یې د ولس شکایتونه اوریدل او د اسلامي شریعت په رڼا کې به یې په هکله فیصلې کولې.

په خپله مرحوم عالیقدر امیرالمؤمنین له ولس سره د امارتي مسؤلینو د تعامل د څار یو ځانګړی مخفي سیستم درلود چې قاصدان به یې په ولس کې ګرځیدل او د چا به چې چارې د اسلامي شریعت او مسلک سره برابرې نه وې په اړه به یې د اسلامي شریعت له مخې فیصله کوله، په تعلیمي او اقتصادي برخو کې خلکو ته د خپل وس تر حده چوپړ روان ؤ، د ځوانانو د تفریح لپاره هغه وخت چې څه ممکن وو هغه ټولو ته د اسلامي شریعت له مخې د یو لړ اصولو په چوکاټ کې اجازه ورکول شوې وه او تشویقیدل، په جبري توګه د ښځو ودول، په بدیو کې د ښځو ورکول او له ښځو سره ځینې نور زور زیاتي ممنوع اعلان شوي وو او په کلکه یې مخه نیول کیده.

نو اوس تاسو قضاوت وکړئ چې د داسې یو نظام پرتله کول له هغه شاهي نظامونو سره کوم عقل او منطق دی چې د یوې کورنۍ په اختیار کې وو، پریکړې به یې یوه شخص کولې، زعامت او کلیدي پوستونه پکې میراثي وو او زیاترو یې له خپل هوا او هوس څخه پرته نور څه نه پیژندل، په لستوڼو کې یې مارانو ته ځای ورکړی ؤ، په قدرت کې د بقاء په خاطر یې هیواد له ډول ډول کړاوونو سره مخ کاوه، کله به یې د شرق لمن نیولې وه او کله د غرب او د ډول ډول شیطاني مفکورو راواردولو ته یې زمینه برابره کړې وه.

له داسې پوچو تبلیغاتو څخه یوازینی هدف د مذاکراتو له لارې د افغانستان د معضلې له حل څخه ویره، په بین الافغاني مذاکراتو کې د بې باورۍ د فضاء راپیدا کول او د اسلامي امارت او اسلامي نظام په اړه د کمترۍ د احساس پنځول او دښمني ده، چې کله به هم د دې تبلیغاتو ډنډورچیان دې شومو اهدافو ته ونه رسیږي، یوازې به په ولس کې خپل ځانونه لا زیات سپک، منفور او منزوي کړي.

دا چارواکي باید د اسلامي امارت څخه د مخه هغه ورځې وریادې کړي چې د سمتي او لساني تعصبونو، هوا او هوس په اور کې د کابل ښار وسوځیده او په کنډواله بدل شو ، ۶۰ زره ښاریان ووژل شول، په هره پوسته او هر پاټک کې د خلکو په مال او عزت لوبې کیدلې، د خلکو په سرونو میخونه ټک وهل کیدل، د رقص مرده نندارې جوړیدلې، له انسانانو څخه د کُلابو کار اخیستل کیده او دوی یې یا مخکښان او یا د مخکښانو لاس په نام عسکر وو، دوی باید د هغه جنایتونو له کبله چې په تیرو شلو کلونو کې یې په اصطلاح د اسلامي جمهوري دولت د قانون د واکمنې، اجتماعي عدالت، د بیان د آزادۍ، د ښځو د حقوقو تر رنګینو شعارونو لاندې ترسره کړل وشرمیږي، مړه شي او په ځمکه ننوزي.

د لویدیځ د غلامۍ قبلول، له لویدیځوالو سره یو ځای د خپل ولس قتل عام، د فتنې ، فساد او فحشاء خپرول، بې دینۍ او ارتداد ته د زمینې برابرول، کمساری اداري فساد، د خلکو لوټ تالان، په لویو ښارونو کې کمساري جنایي جرمونه، د ښځو په عزت او ناموس ډلئیز تیري، د اسلامي

مقدساتو توهین، له ۹۰ سلنې ځخه زیاته د فقر کچه، له هیواد څخه د سلګونه زرو ځوانانو تبنتیدل، په مخدره موادو د میلیونونه ځوانانو معتاد کیدل او په شپنیو چاپو کې د پوره پوره کورنیو له منځه وړل کیدل، دا ټول د دوی د جمهوریت ارمغانونه دي .افغانان به په لویو ښارونو کې په څو بلند منزلونو، ښارګوټو، د شپې له مخې په نایټ کلبونو کې په ګډا، بلو څراغونو، شرابو، په سلګونو راډیوګانو، ټلویزیونونو او ټولنیزو شبکو کې په څلورویشت ساعته ساز، سندرو، فحاشي، د یو بل په سپکاوي او توهین او د خرو په لمانځلو څه وکړي؟ !او د کوم درد دوا به یې شي؟ !او تر اوسه یې کوم درد پرې دوا شوی دی ؟ .!

**تمه پوښتنه :** اسلامي امارت د افغانستان ولس ته څه ورکړي دي، په خپل وخت کې یې په سیاسي، اقتصادي او ټولنیزو برخو کې کوم خدمتونه ورته ترسره کړي دي؟ که لطفاً په دې اړه یو څه رڼا واچوئ!

**ځواب :** د افغانستان اسلامي امارت خپل ولس ته ډیر څه ترسره کړي دي او خپل ولس ته د ډیرو خدمتونو افتخار لري؛ خو څنګه چې هغه مهال اسلامي امارت په سخته سیاسي او اقتصادي محاصره کې قرار درلود له همدې امله یې رغنیزې چارې په خلاص مټ په پراخه کچه او د نړۍ له نوو علمي او ساینسي پرمختګونو څخه په استفادې نشوای سرته رسولای او کوم خدمتونه یې چې ترسره کړي دي له مهمو څخه یې دلته یادونه کوو :

۱ — د شورویانو او کمونستانو پر خلاف د سپیڅلي جهاد د دوو سترو ارمانونو ) ریښتني استقلال او سوچه اسلامي نظام د حاکمیت ( پر خلاف د یوې سترې دسیسې پر وړاندې پاڅون .

۲ — د انارشي او ملوک الطوایفي او هغه زرګونو پاټکونو ختمول چې هره لحظه د خلکو مال، عزت او ژوند پکې لوټل کیده.

۳ — هیواد له تجزیې څخه ژغورل.

۴ - د یو پیاوړي مرکزي نظام ټینګښت.

۵ — د اسلامي شریعت تطبیق، د حدودو جاري کول، امر بالمعروف او نهي عن المنکر او له پیړیو څخه وروسته د اسلامي نظام د عملي نمونې وړاندې کول .

۶ -د سرتاسري کمساري امنیت ټینګول .

۷ -د کمساري اسلامي اخوت د نمونې وړاندې کول او د ناپییلتوب د دریځ ساتل.

۸ -د حکومتي نظام، وزارت خانو او نورو اداري واحدونو د تأسیساتو ترمیم او فعالول .

۹ -د پوهنتونونو، مکتبونو او مدرسو ترمیم او فعالول، د نصاب ورته چاپول، د استادانو د معاشاتو اجراء کول او د دیني او عصري تعلیم تر منځ د توازن کرښه راکشول او د لسیزو راپدیخوا د هغه تعصب ورکول چې د عصري او دیني تعلیم د مؤسساتو تر منځ لمن ورته وهل کیدله .

۱۰ -سره له دې چې طالبانو په اقتصادي محاصره کې قرار لاره، سخت اقتصادي بندیزونه پرې لګیدلي وو؛ خو د ګمرکي محصولاتو په کمولو او د مضاربت د سیستم په ترویج سره یې تجارت بیرته وغوړاوه، د ژوند د اولیه موادو ډیره ارزاني وه او ډیرو غریبو کورنیو هم د خپل ژوند د سوکالۍ په خاطر پرمختللي نقلیه وسایط درلودل .

۱۱ -د سروبي، نغلو او کجکي د بریښنا د بندونو رغول، کابل، هلمند او کندهار ته د بریښنا د مزو تیرول او ښاریان یې له بریښنا څخه برخمن کول .

۱۲ -د بغلان د نساجۍ او سمنټو د فابریکې د ماشینونو ترمیمول او تولید ته یې آماده کول، د شبرغانو د ګازو د استخراج د ماشینونو فعالول، مزار ته د ګاز د پایپ لین غځول او د مزار د کود کیمیاوي د فابریکې فعالول) چې له مخکې څخه یې زیات تولیدات درلودل (او د سمنګان او کرکر د ډیرو سکرو د کانونو فعالول او تولید ته یې آماده کول .همدغه راز شخصي پانګوالو د کابل په صنعتي پارک کې تر سلو پورې فابریکې فعالې کړې او د بریښنا مزي ورته راکش او بریښنا ورته راتیره شوه، په کندز کې د سپین زر فابریکه بیرته فعاله او په تولید یې پیل وکړ، په جلال آباد کې د

پلاستیک فابریکه هم فعاله شوه او د هیواد په نورو لویو ښارونو کې هم ډیرې کوچنۍ فابریکې فعالې شوې چې زرګونو افغانانو ته د کار زمینه پکې برابره شوه، همدغه راز ډیر زیات مارکیټونه، دوکانونه او ښارګوټي شخصي پانګوالو او تجارانو جوړ کړل .

۱۳ -له هغو ډیرو لږو امکاناتو څخه په استفادې چې اسلامي امارت درلودل د طورخم – جلال آباد، جلال آباد – کابل ، کابل – پکتیا ، کابل – غزني ، غزني – کندهار ، کندهار – هرات ، هرات – تورغونډۍ او کندهار – بولدک د سړکونو ترمیمول، همدغه راز له طورخم څخه تر جلال آباد پورې د سړک پخولو اساسي کار روان ؤ ، له جلال آباد څخه تر کابل پورې د سړک پخولو اساسي کار روان ؤ چې تر درونټې پورې رسیدلی ؤ ، له کابل څخه تر غزني پورې د سړک پخولو اساسي کار روان ؤ چې تر میدان ښار پورې رسیدلی ؤ ، له کندهاره تر بولدکه، له کندهار تر هرات او له هرات څخه تر تورغونډۍ پورې د سړک پخولو اساسي کارونه روان وو او دې ته ورته د کندهار، هرات، جلال آباد ، کابل او ځینو نورو ښارونو د داخلي سړکونو د پخولو کار هم روان ؤ .

د یادونې وړ بولم چې اسلامي امارت د ریاست الوزراء د اقتصادي مرستیال جناب مولوي صاحب عبدالکبیر په مشرۍ یوه اقتصادي شورۍ درلودله او دې شورۍ د خپلو داخلي عوایدو او تجارانو د شخصي پانګونې او د تجارانو د مرستې په مټ د داؤد خان د وخت د هیواد د بیا رغونې پنځه کلن پلان دوباره تر غور لاندې ونیو او د هغه برخو د عملي کولو پلان یې جوړ کړ چې عملي کول یې ممکن او په ګټه وو، د کنړ په سیند د بریښنا د بند د جوړولو ، د ګنبیرې دښتې ته د نهر د راتیرولو او په ځینو نورو ځایونو کې د نهرونو د تیرولو، د اوبو د ذخیره کولو او د بریښنا د بندونو د جوړولو سروې ګانې روانې وې او په بانکونو کې یې د دې پرمختیایي پروژو سره د کومک لپاره یو ځانګړی حساب خلاص کړی ؤ، زما اوس هم یوه دردوونکې خاطره په یاد ده چې د جلال آباد ښار د سړکونو د پخولو د چارو لپاره د ماشین آلاتو اخیستلو ته ضرورت ؤ، هغه ماشین آلات په یو ګاونډي هیواد کې واخیستل شول او په ډیره سختۍ سره په قاچاق جلال آباد ته رانقل شول او د امریکایانو د یرغل له وجې دا چاره نیمګړې او ماشین آلات په سړکونو ولاړ پاتې شول.

۱۴ -له ولس سره د خیر ښیګڼې په هدف ټولو بهرنیو خیریه مؤسسو ته د فعالیت د آسانتیاؤ برابرول، پاتې د نه وي چې د دې تر څنګ یې په شفافیت سره د کومکونو د مصرف او خدمتونو د سرته رسولو لپاره د پلان د وزارت په چوکاټ کې یو ځانګړی میکانیزم رامنځته کړی ؤ، همدغه راز یې خپله هم عشر او زکات په مسکینانو تقسیماؤ، پخه ډوډۍ یې په نیمایي بیه په مسکینانو پلورله او معیوبینو ته یې د معیوبینو د وزارت له لارې خاص کارتونه توزیع کړي وو، وخت په وخت به یې کومکونه ورسره کول او شخصاً مرحوم عالیقدر امیرالمؤمنین هر هغه چاته چې دواړه پښې یې د سرو لښکرو او کمونستانو پر خلاف په جهاد کې له لاسه ورکړې وې او یا فلج وو د ګرځیدا راګرځیدا لپاره موټر ورکول.

۱۵ -د مدرسو او جوماتونو آبادول .

۱۶ -د ټاپې د سترې څو هیوادیزې اقتصادي پروژې پیل، د نوو افغانیو د بانک نوټونو ډیزاین او د اتصالاتو او د عصري ټلیفوني سیستمونو د نصبولو په برخه کې له اړونده شرکتونو سره خبرې او په قراردادونو کار، چې دا هر څه د امریکایي تیري له امله ناتکمیل پاتې شول .

۱۷ -په مطبوعاتي برخه کې هم راډیوګانې فعالې وې، د هیواد د استقلال ورځ په ښه جوش سره لمانځل کېدله، ادبي غونډې، مشاعرې، تمثیلي ټوټې او مسابقې جوړېدلې، مجلې اخبارونه او کتابونه چاپېدل .

۱۸ -په ټول هیواد کې د سپورټ ټولو ډولونو ته د اسلامي شریعت له مخې د یو لړ خاصو شرایطو په اساس اجازه ورکول شوې وه او سپورټي مسابقې تشویقدلې .

۱۹ -اسلامي امارت هوایي میدانونه ورغول او یو کوچنی هوایي نظامي ځواک یې) چې یو شمیر هلیکوفتر، بار وړونکې او جنګي جیټ طیارې یې درلودلې ( رامنځته کړ، ټول نظامي سپک او درانه وسایل یې راجمع او ترمیم کړل، پوځي تأسیسات یې ورغول او ټول یې د وزارت دفاع تر کنټرول لاندې راوستل او داسې پوځي او امنیتي ځواک یې رامنځته کړ چې په ډیرو کمو امکاناتو او داخلي عوایدو یې پالنه کوله، نه د ولس د اوږو بار ؤ او نه د بهرنیو مرستو په بدل کې غلامۍ ته اړ ؤ، بلکه د احمدشاه بابا د پیر په څیر یو مستقل او سرلوړی پوځي ځواک ؤ، چې د سیمې هیوادونو هم ترې سترګه کوله .

۲۰ -د مخدره موادو د کښت او قاچاق صفر ته راښکته کول) چې اوس یې په جمهوریت کې کچه بیرته د نړۍ پر مخ تر ټولو لوړې درجې ته رسیدلې ده او په کور د ننه تر درې میلیونه پورې د مخدره موادو معتادین شتون لري).

۲۱ – د اداري فساد ختمول .

د یادونې وړ ده چې اسلامي امارت یاد ټول خدمتونه د خپلو کمو داخلي عوایدو په مټ ترسره کول، هیڅ ډول بهرنۍ مرسته نه وه ورسره حال دا چې په څو جبهو کې له شر او فساد سره پر مصرفه جبه ئي جنګونه هم روان وو او د ملګرو ملتونو له لوري له سختو اقتصادي بندیزونو سره هم مخ وو .

اشغالګرو او د دوی ګوډاګیانو هغو سلګونه میلیارده ډالرو ته په کتو ) چې د افغانستان له بیا رغونې سره د مرستې په نامه اعلانیدل ( د بیا رغونې په برخه کې له څو سمبولیکو کارونو څخه پرته هیڅ د پام وړ بنسټیز کارونه نه دي ترسره کړي او په څه چې سترګې لګیږي او ترسره شوي دي هغه هم زیاتره خصوصي پانګه والو ترسره کړي دي .

پاتې د نه وي چې له پیل څخه تر اوسه پورې اسلامي امارت او زموږ شهید پرور ولس په مطبوعاتي محاصره کې قرار لري او زیات مجال د دې نه دی پیدا شوی چې خپل ولس ته د اسلامي امارت خدمتونه او په دې برخه کې لاسته راوړنې په درسته توګه منعکسې شي او زه شخصاً په دې برخه کې له اسلام پالو لیکوالانو څخه هم ګیله لرم چې خپل ولس ته د اسلامي امارت له لوري د ترسره شوو خدمتونو انعکاس او په دې برخه کې تحقیقاتو ته زیاته پاملرنه نه کوي او ډیر ارزښت د حاضرو حالاتو انعکاس ته ورکوي، الله جل جلاله دې وکړي چې دې برخې ته یې توجه راوګرځي او زیاته پاملرنه ورته وکړي.

**نهمه پوښتنه:** د کابل اداري په داخل کې له امرالله صالح څخه نیولې د احمدشاه مسعود تر ورور پورې، هغوی وایي چې مذاکرات کومه نتیجه نه ورکوي او له خپلو جګړه مارو یې غوښتي چې یوې بلې جګړې ته تیار شي؛ داډول خبرې څه معنا لري او آیا دغه څیرې دومره ځواک او نفوذ لري چې یو ځل بیا انارشیزم رامنځته کړي؟!

**ځواب:** احمدضیاء مسعود، امرالله صالح او د دوی په څیر نورو کسانو ته له خپلو شخصي منافعو او د افغانستان دښمنه هیوادونو استخباراتي سازمانونو ته له جاسوسۍ پرته بل څه ارزښت نه لري؛ له خارجي استخباراتي سازمانونو څخه د استخباراتي پروژو ټیکه کول او د خپل ولس او خپلې اسلامي عقیدې پر ضد فعالیت د دوی د ژوند تر ټولو ستره موخه ده، دوی د افغانستان د ټولنې د هیڅ برخې نماینده ګي نه کوي او دا دوی ته د پردیو افغان دښمنه قوتونو څخه پیچکاري شوی نظر دی.

د افغانستان خلک ریښتینې سوله او امن غواړي او د مذاکراتو له لارې د اشغال خاتمه او په افغانستان کې د یو سوچه اسلامي نظام حاکمیت غواړي؛ نور هغه دور تیر شوی دی چې څوک دې د افغانستان د خلکو د ارمانونو او د دې ارمانونو د ستر ممثل ) اسلامي امارت ( پر وړاندې ودریږي،

ډلې ټپلې او ملیشې دې جوړې کړي؛ که د بهرنیانو پوځې او مالي مرستې نه وي، دوی ټول د اسلامي امارت د مجاهدینو د یوې نظامي ډلګۍ د مقابلې وس هم نه لري .

**لسمه پوښتنه :** امرالله صالح ډیر ځله د امارت د نورو مشرانو تر څنګ ستاسې نوم یادوي چې د هغوی جهادي تکتیکونه مو په خپل وخت کې خنثی کړي دي ، محترم جواد صاحب د صالح دغو غورځو پرځو ته څه ځواب لرئ؟

**ځواب:** زه دا منم چې امرالله صالح به د(CIA) ، (MI٦)، (DGSE) او (RAW) د جاسوسانو د روزلو په کومو روزنیزو پروګرامونو کې برخه اخیستې وي؛ خو د ګوډاګي اداري د ملي امنيت د رئيس په توګه د دندې پر مهال د ده ناکامي او د ګوډاګي نظام په پلویانو کې د ده په اړه موجود نفرت دا رابښيي چې نوموړی یو مسلکي استخباراتي کدر نه دی او د استخباراتي مسلکي کدر په توګه نه خپلې چارې په سمه توګه سرته رسولای شي او نه په خپله نفعه رواني مثبتې اغیزې پریباسلی شي .د اسلامي امارت د استشهادي مجاهدينو هغو تکتیکونو چې امرالله صالح يې تصور هم نشوای کولای؛ نوموړی د ګوډاګي اداري د ملي امنيت د لوی ریاست له منصب څخه راپرېباسه او لاندې یې راخطاء کړ؛ نو په کومو سترګو دی بیا دا شرموونکې دروغجنه ادعاء کوي چې ما د استشهادي عملیاتو د تنظیموونکو تکتیکونه ناکام کړي دي؟

که د امرالله صالح په وخت کې وو او که له هغه څخه راوروسته، څه چې د ګوډاګي اداري د ملي امنيت د لوی ریاست په نامه ترسره کيدل، دا هر څه د غربي استخباراتو له لوري ترسره کیدل او د هر ریاست چارې يې په حقیقت کې هغو خارجي اجنټانو مخته وړلې او مخته يې وړي چې د لویدیځو استخباراتي سازمانونو له لوري په هر ریاست کې نصب شوي او د دوی مسلکي اجنټان دي.

موږ امرالله صالح ته د یو ښه لفاظ او قوال څخه ویلای شو، د جاسوسی ښه اکټونه او تمثیلونه يې تمرین کړي دي؛ خو کله هم یو مسلکي استخباراتي کدر نه دی، الحمدلله د استشهادي عملیاتو تکتیکونه او تخنیکونه ډیر پیچلي، پرمختللي او بریالي دي، همیشه پکې د نوو نوو تجربو په اساس له نوو نوښتونو او ابتکاراتو څخه کار اخیستل کیږي او نن چې د دښمن ماغزه ځای ته راغلي دي او د زور د ژبې پر ځای د خبرو ژبه کاروي، دا د اسلامي امارت د نورو مجاهدینو د کمسارو قربانیو تر څنګ د استشهادي عملیاتو برکت دی؛ نه د امرالله صالح په وخت کې د ګوډاګي اداري د ملي امنيت اداري مخکې له مخکې د استشهادي عملیاتو د کشف او مخنیوي توان درلود، نه يې تر اوسه دا توان پیدا کړی دی او نه يې فزیکي امنيتي موانع د استشهادي عملیاتو د تکتیکونو پر وړاندې د مقابلې ورتیا او وس لري، له ډیرې ناتوانی څخه يې تل هڅه کړې ده چې د استشهادي عملیاتو د رواني اغیزو پر وړاندې د خپل تبلیغاتي ماشین په مټ مورچل ونیسي .

**یوولسمه پوښتنه :** دوحې ته له کابله له راغلي ټیم پرته نور افغان جهتونه هم شته چې د خبرو له بهیر څخه بهر پاتې دي، له هغوی سره به د تفاهم بهیر څنګه وي؟

**ځواب:** بلې؛ د افغانستان اسلامي امارت له ټولو مطرحو افغاني جهتونو سره په تماس کې دی او د مسئلې ریښتینې حل هم هغه وخت راوتلی شي چې کله په روانه بین الافغاني پروسه کې ټول مطرح جهتونه دخیل وي، اسلامي امارت به

اجازه ورنکړي چې یوه خاصه شریره کړۍ په بین الافغاني مذاکراتي بهیر کې د ټولو مطرحو افغاني جهتونو شمولیت او بنکیلتیا یرغمل او سبوتاژ کړي .

**دوولسمه پوښتنه :** آیا رښتیا هم امریکا دې ته چمتو شوې چې خپل اشغال ختم کړي او که مذاکراتو ته، خپلو موخو ته د رسیدو د یوې لارې په توګه ګوري؟

**ځواب :** امریکایانو د زور ټولې لارې وکارولې او دې نتیجې ته رسیدلي چې خپل اشغال ته دوام نشي ورکولای او نه خپل ګوډاګیان په افغانانو باندې د ډېر وخت لپاره تحمیلولای شي، له همدې امله یې د مذاکراتو او منطق لاره خپله کړه . دا چې دوی په خپله محاسبه کې د مذاکراتو له لارې د خپلو کومو اهدافو تحقق په پام کې لري دا په دوی پورې اړه لري، خو موږ له امریکایانو سره توافقنامې ته د کلکې ژمنتیا تر څنګ پوره ویښ او بیداره یو، ان شاء الله نه به مو څوک په اغفال کې واقع کړي او نه به د تاریخ د هغه ترخو تجربو تکرار ته اجازه ورکړو، کومې چې له اسلامي او جهادي حرکتونو سره د دښمنانو د مذاکراتو په اړه موجودې دي.

**دیارلسمه پوښتنه :** د روان میلادي کال د جون په میاشت کې ملګرو ملتونو په یو راپور کې ادعاء وکړه چې اوس هم د افغانستان په یو شمیر ولایتونو کې بهرنۍ جهادي ډلې شتون لري، د غړو تعداد یې سلګونو ته رسیږي، د طالبانو په پلوۍ جنګیږي، طالبان دوامداره اړیکې ورسره لري او د طالبانو په لیکو کې یې د ځینو نوو ترسیمونو ادعاء هم وکړه، ستاسو په نظر د ملګرو ملتونو د داسې راپورونو سرچینې کومې دي؟ په دې راپور څومره باور کیدای شي؟ او ولې داسې راپورونه خپروي ؟

**ځواب :** په افغانستان کې د بهرنیو استخباراتي سازمانونو یوه شریره کړۍ) چې د دوی بهرني او افغاني اجنټان پکې شمولیت لري( شتون لري، د دې شریرې کړۍ د بهرني اړخ مخکښ ) مایکل سمپل ( دی چې (MI٦) ته کار کوي، یو وخت د افغانستان لپاره د اروپایي اتحادیې د استازي مرستیال هم ؤ، نوموړی په افغانستان او سیمه کې د پټو، خطرناکو او مرموزو استخباراتي کړنو سابقه لري او تازه یې له ارګ سره اړیکې قایمې کړې دي، نوموړی د مذاکراتو د روان بهیر له سرسختو مخالفینو او مخربینو څخه دی، د دې شریرې کړۍ د کورني اړخ مخکښان د ګوډاګۍ ادارې د ملي امنیت پخواني چارواکي دي، دوی ټول د مذاکراتو او سولې له روان بهیر، د امریکا او د افغانستان د اسلامي امارت تر منځ د اشغال د خاتمې له تړون او بین الافغاني مذاکراتو سره کلک مخالفت لري او د تخریب او سبوتاژ په هڅه کې یې دي.

زما د معلوماتو له مخې د ملل متحد د دې راپور له خپراوي څخه د مخه) مایکل سمپل ( په سرینا هوټل کې دیره ؤ او له خپلو خارجي او داخلي همکارانو سره یې یو ځای د دې راپور لپاره معلومات برابرول چې زیاته برخه یې جعلي وه، همدغه راز مایکل سمپل یوه بله تخریبي ځېرنه د زندانیانو د پروسې له تکمیل څخه د مخه له) فلیکس کوهن (سره په ګډه د بلفاسټ پوهنتون لپاره هم ترسره کړې وه چې د سپتمبر د میاشتې په اوایلو کې د فارن پالیسي لخوا خپره شوه ، په دې ځېرنه کې هم ده ادعاء کړې وه چې د خلاص شوو طالبانو ډېرې برخه بیرته د جنګ لیکو ته ستانه شوي دي او هڅه یې کړې وه چې د زندانیانو د خلاصون پروسه تخریب او په دې توګه بین الافغاني مذاکرات سبوتاژ کړي .

مایکل سمپل او له خارجي او داخلي اجنټانو څخه جوړه دا شریره کړۍ د داسې دروغجنو راپورونو د لیکلو، د جعلي ځېړنو د ترسره کولو او د دروغجنو افواهاتو د خپرولو سابقه لري، د افغانستان اسلامي امارت متحد دی، په راپور کې ادعاء شوی ترسیم هیڅ حقیقت نه لري تر دې چې د یاد شوي ترسیم ادبیات هم د اسلامي امارت له ادبیاتو سره هیڅ اړخ نه لګوي.

د افغانستان اسلامي امارت) د خپل شرعي مکلفیت له مخې (له امریکایانو سره شوې توافقنامې ته په کلکه ژمن دی او د توافقنامې د عملي کولو لپاره چې کوم میکانیزم جوړ شوی دی، د هغه میکانیزم له مخې قدم په قدم وړاندې ځي او له امریکایانو څخه هم ورته تمه لري او توافقنامې ته د دوی ژمنتیا له نیږدې څخه څاري، امریکایان او نړیواله ټولنه باید

ډېره متوجه واوسي او د يادې شريرې کړې او نورو هغه شريرو کړيو په دام کې ونه نښلي چې غواړي د خپلو شخصي ګټو او منافعو په خاطر له امريکايانو سره شوي توافقنامه او د بين الافغاني مذاکراتو روان بهير تخريب او سبوتاژ کړي، همدغه راز بايد هغه کاذبو او جعلي ترسيمونو او موجوديتونو ته هم متوجه واوسي چې د مذاکراتو او سولې د روان بهير د مخالفو شريرو منزوي اجرتي استخباراتي کړيو له لوري ترسيميږي، د جعلي موجوديت د تثبيت هڅه يې کيږي او له آدرسه يې په جعلي نومونو داسې مواد خپريږي چې شکونو او بې باورۍ ته لمن وهي .

**څوارلسمه پوښتنه:** څومره هيله شته چې له هغو خلکو سره روغې جوړې ته ورسيږو چې دا اتلس، شل کاله د اشغال په چوپړ کې وو؟

**ځواب:** د افغانستان د اسلامي امارت په مشرۍ د افغانانو له روان سپيڅلي جهاد سره د الله تعالى ځانګړې نصرت دى او د دې نصرت په مټ د هغو سختو پړاوونو وهل او هغو سختو منزلونو ته رسيدل ممکن شول چې چا يې تصور هم نشواى کولاى، ان شاء الله لوى الله جل جلاله به داسې شرايط برابروي چې مقابل لورى به مسخر کيږي او د مذاکراتو له لارې به حق ته غاړه ږدي، موږ جنګ هم د لوى الله جل جلاله د نصرت په اتکاء مخته وړو او سياست هم او په دې باور يو چې تر څو له حق څخه کاږه نشو وروستۍ فتحه او برى زموږ په برخه دى.

**پنځلسمه پوښتنه:** افغان ولس ته مو پيغام څه دى؟

ځواب :زما پيغام خپل مجاهد ولس ته دا دى چې د روان سپيڅلي جهاد دوام، له فتنې او فساد څخه زر ځله بهتر دى، يا بايد د سياست او مذاکراتو له لارې فتنه او فساد له منځه لاړ شي، اشغال پاى ته ورسيږي، له ريښتينې آزادۍ څخه برخمن شو او سوچه اسلامي نظام حاکم شي او يا بايد روان سپيڅلى جهاد دوام وکړي، تاسو ته به ځور وي ، کړاو به وي، بربادي به وي؛ خو د فتنې او فساد زيانونه له دې څخه په زرهاؤ مراتبه زيات، سخت او خطرناک دي او که روان سپيڅلى جهاد او د نبوي شرعي سياست په اساس مبارزه نه وي روانه او او فتنه او فساد په خلاص مټ د نمو، ودې او خپراوي فرصت ولري؛ نو کيداى شي په نيږدې راتلونکي کې زموږ نوى نسل خپل اسلامي او ملي هويت له لاسه ورکړي او زموږ په هيواد کې يوازې په نوم مسلماني او افغانيت پاتې شي او موږ به د ريښتينې آزادۍ او سوچه اسلامي نظام د حاکميت په شکل کې د هغه ميليونونه قربانيو له ثمرې څخه بې برخې شو چې په تيره يوه پيړۍ کې مو د دريو امپراطوريو او ظالمو او مفسدو نظامونو پر ضد ورکړې دي؛ نو له صبر او استقامت څخه کار واخلئ، د سيکولرانو او کمونستانو او د شر او فساد د باندونو د مخکښانو تبليغاتو ته غوږ مه ږدئ . ان شاء الله ډير ژر به د سختۍ دا ورځې تيرې شي او آساني به راشي او دا د الله جل جلاله حقه وعده ده، ډير ژر به د يو سوچه اسلامي نظام په سيوري کې له خواږه او آرام ژوند څخه برخمن شئ.

ان شاءالله وماذ لک على الله بعزيز. پـــاى



د افغانستان اسلامي امارت

# د مذاکراتي ټیم د غړو لنډه پیژندنه

## محترم شیخ الحدیث مولوی عبدالحکیم حقاني

شیخ مولوي عبدالحکیم صاحب د مرحوم مولوي خدایداد صاحب زوی د کندهار ولایت د میوند ولسوالۍ په بند تیمور کلي کې په ۱۳۳۶ هجري شمسي کال زیږېدلی دی.

د طالبانو د اسلامي تحریک په پیل کې د مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد سره ملګری وو، دتحریک په بنسټ ایښودو کې یې مهم رول درلود.

د اسلامي امارت د واکمنۍ پر مهال د کندهار ولایت په جهادي مدرسه کې د تدریس تر څنګ د تمیز ریاست او په مرکزي دار الافتاء کې یې خدمت ترسره کړی دی.

پر هیواد د امریکایي یرغل وروسته د مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد په هدایت د محاکمو اوسنی جوړښت او تشکیل کې یې مهم رول ادا کړی، کله چې اوسنی امیرالمؤمنین شیخ هبة الله اخوندزاده صاحب د سترې محکمې رئیس وو، شیخ مولوي عبدالحکیم صاحب د تمیز محکمې ریاست په غاړه درلود. د مشر په توګه د شیخ صاحب هبة الله اخوندزاده ټاکل کېدو وروسته د سترې محکمې د مشرۍ چارې شیخ مولوي عبدالحکیم صاحب ته وسپارل شوې.

نوموړی اوس مهال د افغانستان اسلامي امارت د رهبري شورى غړی او د مذاکراتي ټیم مشر دی.

## محترم شیرمحمد عباس ستانکزی

شیرمحمد عباس ستانکزی د مرحوم حاجي پادشاه خان زوی، په ۱۳۳۸هـ ش کال د لوګر ولایت د برکي برک ولسوالۍ په عباس کلي کې زیږېدلی دی. ابتدایي زده کړې یې د خپل کلي په جومات او د کابل په عمراخان ښوونځي کې ترسره کړي او د کابل حربي ښوونځي څخه فارغ شوی دی. د سردار محمد داود خان لخوا د نورو افغان محصلینو سره یوځای د لوړو نظامي زده کړو لپاره هندوستان ته ولیږل شو او په ۱۳٦۰هـ ش کال د تعلیم له بشپړولو ورسته د شوروي اشغال پرخلاف د جهاد لیکو ته وروګرځید. په جمعیت اسلامي او اتحاد اسلامي ګوندونو کې یې د نظامي استاذ په توګه دندې ترسره کړي، او په ۱۳٦٤هـ ش کال د اتحاد اسلامي د جنوب لویدیځې حوزې نظامي آمر و. نوموړي د قلات، د کندهار هوايي ډګر، د لښکرګاه او په نورو لویو عملیاتو کې عملا برخه اخیستې او له هماغه وخته یې د شهید ملابورجان اخند، شهید ملا مشر اخند، مرحوم ملا محمد رباني او نورو پخوانیو مشرانو سره پیژندګلوي درلوده. په۱۳٦۹هـ ش کال د حرکت انقلاب اسلامي ګوند د عمومي نظامي مسئول په توګه وټاکل شو او د نجیب د حکومت تر سقوطه په همدې دنده پاتې شو. د تنظیمي جګړو پر مهال په کور کښیناست، کله چې د طالبانو اسلامي تحریک راپورته شو ورسره یوځای شو. د طالبانو د واکمنۍ پرمهال لومړی د کندهار ولایت د خارجه ارتباط مرستیال و، بیا په کابل کې د بهرنیو چارو وزارت د معین او بیا د عامې روغتیا وزارت د معین په توګه دندې ترسره کړې. پر هیواد د امریکایي یرغل وروسته یې یوځل بیا په نظامي او سیاسي مبارزه لاس پورې کړ، په لومړي سر کې د طالبانو د سیاسي کمیسیون غړی و، بیا یې مرستیال شو، د ۲۰۱۵م اګست څخه بیا تر ۲۰۱۹م جنوري پورې د سیاسي دفتر رییس پاتې شوی. ستانکزي صیب د امریکایانو سره د مذاکراتي ټیم مشري په غاړه درلوده او اوس مهال د رهبري شورا غړی، د سیاسي دفتر او مذاکراتي ټیم مرستیال دی.

## محترم ملامحمد فاضل مظلوم

ملا محمد فاضل مظلوم په ۱۳۴۵هـ ش د اروزګـان ولایـت په چارچینو ولسوالۍ کـې زیږیـدلی دی. ابتـدائي او دینـي زده کړې یې په هیواد کې دننه په مختلفو مدارسو او مسـاجدو کـې د وخت د مشهورو علماو څخه تر لاسه کړي دي.

محترم ملا فاضل اخوند په ګوانتنامو بندي خانه کې د قرآن کریم حفظ وکړ.

د اسـلامي امـارت د واکمنـۍ پرمهـال د مـلي دفـاع وزارت معین او لـوی درسـتیز و. پـر افغانسـتان د امریکـایي یرغـل پـه لومړیو ورځو کې ملا محمـد فاضـل پـه شـمال کـې اسیر او بیا امریکایانو ته وسپارل شو. نومـوړی پـه ۱۱/ ۱/ ۲۰۰۲م تـاریخ د کیوبا ګوانتنامو زندان ته ولیږدول شو چې شاوخوا دیارلس کالـه هلتـه بنـدی و. نومـوړی بلاخـره پـه ۱ د جـون ۲۰۱۴م د یـو امریکایي بندي (بوبرګډال) سره د تبادلې په نتیجه کې د څلـورو نورو مشرانو سره یو ځای ازاد او قطر هیواد ته انتقـال شـو. مـلا محمـد فاضـل اخونـد پـه ۲۰۱۸م کـال کـې د سـیاسي دفـتر او امریکایانو سره د مذاکراتي ټیم غړی وټاکل شو. او بیا وروسـته د مذاکراتي ټیم معاونیت هم ور وسپارل شو. نومـوړی اوس مهـال د افغانسـتان اسـلامي امـارت د رهـبري شـورى، سـیاسي دفـتر او مذاکراتي ټیم غړی دی.

## محترم مولوی عبدالسلام حنفی

مولوي عبد السلام حنفي د علي مـردان زوی پـه ۱۳۴۸ هــ ش کال کـې د درزاب ولسوالۍ چې مخکې د فاریـاب ولایـت مربوط وه او فعلا د جوزجان ولایت اړوند ده، په ګردن کلي کې زیږیدلی دی.

ابتدائي زده کړې یې د شیربیګ په ښوونځي کې کـړي دي، کله چې جهاد شروع شو، په خپل کلي کې یې دیني زده کړو تـه ادامه ورکړه، صرف، نحو او ابتـدایي د فقهـي کتابونـه یـې دلتـه ولوسـتل، او بیـا یـې د سرپـل او فاریـاب ولایتونـو پـه مختلفـو ولسوالیو کې د مشـهورو دینـي علـماوو څخـه د بېلابېلـو فنونـو یعني نحو، منطق، حکمت، بلاغت، فقه، قرائت اوتجوید کتابونه ولوستل.

د تعلیم د پوره کولو په خاطر یې پاکستان ته هجرت وکـړ او هلته یې بیا په مارتونـک، ډاکـي او پیښـور کـې لـوی منطق، ریاضي، اصول فقه، ادب، مناظره، عقاید او د قرآن کریم ترجمـه ولوستل او تر وروستۍ دورې یې زده کړې وکړې. بیا د لـویې دورې لپاره د کراچي ښار مشهورې دیني مدرسې دارالعلوم کراچي تـه ولاړ او هلته یې په ۱۴۱۴ هـ ق کال کې لویه دوره وکړه. بیا یې په بهاولپور کې اصول افتاء، احادیث، تفاسیر او د فقـه کتابونـه یـو وار بیـا ولوسـتل. وروسـته یـې پـه رحـیم یارخـان جامعـه تفسیریه کی د فتوی نویسي او میراث زده کړې وکـړې. نومـوړي د دیني زده کړو سربېره د رخصـتیو پـر مهـال د مختلفـو ژبـو، د کمپیوټر د آفس پروګرامونـو اوهـارډویر کورسـونه او همدارنګـه اکونټینګ کړي دي.

حنفي صاحب د فراغت څخه وروسته مختلف فنون، علوم تر ورې دوري او ترمذي شریف او د میراث دورې تدریس کـړی دی.

نوموړی درې کالـه د کابـل پوهنتـون د حقوقـو او سـیاسي علومـو پـه پـوهنځي کـې د اسـلامي ثقافـت اسـتاد پـاتې شـوی. همدارنګـه پـه مختلفـو هیوادونـو کـې یـې د ډیپلوماسـۍ او مذاکراتو په باب زده کړې کړي دي.

حنفـي صـاحب د خپلـې مـورنۍ ژبـې ازبیکـي سربېـره د پښتو، فارسي، انګلیسي، عـربي، اردو، قرغیـزي، ترکمنـی او ترکي ژبو سره هم بلدتیا لري.

کله چې د طالبانو اسلامي تحریک په کندهار کې پیل شو، حنفي صاحب هغه وخت استاد و او تدریس یې کاوه او د خپلو شاګردانو او د فاریاب ولایـت نـورو علـماوو او طالبـانو سره پـه ګډه د طالبانو اسلامي تحریک سره یو ځای شو.

د اسلامي امارت د واکمنۍ پر مهال یې لـومړنۍ دنـده پـه فراه ولایت کې د تعلیم او تربیې د رئیس په توګه تـر سره کـړې او بیا یو کال په کابل کې د تعلیم او تربیـې وزارت د سرپرسـت په توګه هم پاته شوی او بیا پـه همـدې وزارت کـې د تدریسـی معین په توګه وټاکل شو.

د ۲۰۰۱ کال د امریکایانو د یرغـل وروسـته محـترم حنفـي صـاحب د اسـلامي امـارت لخـوا د جوزجـان ولایـت د والي او مسؤول په حیث وټاکل شو. او څه موده وروسته بیـا د سـیاسي کمیسـیون د غـړي او د مرحـوم امیرالمـؤمنین مـلا محمـد عمـر مجاهد رحمه الله لخوا د رهـبري شـورى د غـړي پـه حیـث هـم وټاکل شو.

محترم حنفي صیب اوس مهال د سیاسي دفـتر معـاون او د مذاکراتي ټیم غړی دی.

## محترم ملا عبدالمنان عمری

محترم ملا عبدالمنان عمري د کندهار ولایت د میوند ولسوالۍ اوسیدونکی او د مرحوم امیرالمومنین ملا محمد عمر مجاهد ورور دی. نوموړي په افغانستان کې پر مختلفو مشهورو علماو تر وړې دورې پورې دیني زدکړې کړي دي. د مختلفو خدمتونو تر څنګ یې د افغانستان اسلامي امارت د دعوت ارشاد، جلب او جذب کمیسیون مشري او همداسې یې د افغانستان اسلامي امارت د ملکی تلفاتو مخنیوی او د سمع شکایاتو د کمیسیون مشري هم کړې.

نوموړی اوس مهال د رهبري شورى او مذاکراتي ټیم غړی دی.

## محترم مولوی صاحب عبدالکبیر

مولوی صاحب عبدالکبیر د محمد جان زوی د بغلان ولایت، نهرین ولسوالی د « قریه تنګی تبقان » په «تنګی ځدران» کلي کې په کال ۱۹۷۲م کې زیږیدلی دی.

نوموړی د دیني علومو فارغ التحصیل عالم او قومي مخور شخصیت دی.

د افغانستان اسلامي امارت د واکمنی پر مهال یې د لوګر او ننګرهار ولایتونو د والي، د ختیځ زون د تنظیمه رئیس او د ریاسة الوزراء اقتصادي مرستیال په توګه دندې اجراء کړې.

مولوي صاحب د اسلامی امارت د بانفوذه مشرانو څخه دی، نوموړي د ۲۰۰۵ نه وروسته د ۲ کلو لپاره د سیاسي کمیسیون مشري هم کړې.

محترم مولوی صاحب اوس مهال د افغانستان اسلامي امارت د رهبري شورى غړی، د دعوت، ارشاد، جلب او جذب کمیسون مشر او د مذاکراتي ټیم غړی دی.

## محترم مولوی امیرخان متقی

مولوي امیر خان متقي د مرحوم حاجي نادر خان زوی په ۱۳۴۹ هجري شمسي کال د کب د میاشتې په اومه د هلمند ولایت د نادعلي ولسوالۍ په زرغون کلي کې دنیا ته راغلی. ابتدائي زده کړې یې د خپل کلي په مسجد او د سیمي په ابتدائي مکتب کي کړي. د ثور د کمونیستي کودتا او وروسته شوروي یرغل له امله چې زموږ زیات شمیر هیوادوال مهاجرت ته اړ شول. نوموړی د ۹ کلونو په عمر چې د مکتب په دریم صنف کې و له خپلې کورنۍ سره له هلمند څخه ګاونډي هیواد پاکستان ته مهاجر شو.

نوموړي د هجرت په مهال خپلو دیني زده کړو ته دوام ورکړ او د ځوانۍ عمر ته په رسیدو یې د جهادي صف په تشکیلاتو کې هم خدمت پیل کړ. مولوي امیر خان متقي دینې زده کړې پای ته رسولي او د نبوي احادیثو د وړې او لویې دورې کتابونه یې په کابل باندي د اسلامي امارت له واکمنې وروسته وویل او له دیني علومو د فراغت سند یې ترلاسه کړ.

کله چې په ۱۳۷۳ لمریز کال کې د فساد او ګډوډۍ په مقابل کې د طالبانو اسلامي تحریک پیل شو. نوموړی له دې تحریک سره یوځای او د تحریک په چوکاټ کې یې جهادي خدمت پیل کړ.

مولوي امیر خان متقي د کندهار ښار له نیولو څه موده وروسته د طالبانو داسلامي تحریک دعالی شورى له غړي توب سره په ۱۳۷۳ لمریز کال د کندهار د شریعت غږ راډیو د آمر په حیث وټاکل شو. د ۱۳۷۴ لمریز کال د سرطان په میاشت کې متقي صاحب د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د رئیس په حیث وټاکل شو. چې د پلازمینې کابل د فتحې تر وخته یې همدې وظیفې ته دوام ورکړ.

د ۱۳۷۵ لمریز کال د میزان په میاشت کې چې کله پلازمینه کابل فتحه شو، متقي صاحب په همدې میاشت کې د اطلاعاتو او کلتور د سرپرست وزیر په حیث وټاکل شو. نوموړي څو کاله د اطلاعاتو او کلتور د وزیر په حیث خدمت ترسره کړ چې ورسره یې د اسلامي امارت ویاندي هم کوله او رسنیو ته یې د اسلامي امارت مواقف اعلانول.

مولوي امیر خان متقي وروسته د ۱۳۷۸ کال د عقرب په میاشت کي د چارو د اداري د لوی رئیس په حیث وټاکل شو او له څه موده وظیفې ترسره کولو وروسته د ۱۳۷۸ هش کال د حوت په میاشت کي د تعلیم او تربیې د وزیر په حیث وټاکل شو چې د امریکایي یرغل تر وخته یې همدا وظیفه سرته رسوله.

مولوي امیر خان متقي د هغه پلاوي مشرتوب هم درلود چې له مخالفینو سره د خبرو لپاره د امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد لخوا تعین شوی و. د نوموړي تر مشرۍ لاندې یاد پلاوي له مخالفینو سره د ازبکستان په تاشکند کې د ۶ + ۲ هیوادونو په ګډون او بیا د ترکمنستان په پلازمینه عشق اباد او

بیا د اسلامی کانفرانس په منځګړیتوب د سعودي عربستان په جده کې مذاکرات ترسره کړل.

د امریکایي یرغل په وړاندې د جهاد په مرحله کې مولوي امیر خان متقي ډیر کلونه د اسلامي امارت د فرهنګي کمیسیون مشر و. نوموړي په خپل مبتکرانه فعالیت سره د دښمن د پراخ رسنیز یرغل په وړاندې د نشراتي جهاد یوه منظمه دستګاه رامنځته کړه او د یوه فعال فرهنګي ټیم په مټ یې د جهاد په اړه د اذهانو په تنویر او د دښمن د تبلیغاتي یرغل په شنډولو کې اساسي نقش درلود.

مولوي امیر خان متقي چې د اسلامي امارت د رهبري شورئ غړیتوب هم لري په ۲۵/۹/۱۴۳۹ هـ ق نیټه د مشر تابه د دفتر د ریس په حیث وټاکل شو او له دوو کلونو راهیسې یې د اسلامي امارت د مشرتابه دفتر ریاست په غاړه درلود او ورسره له امریکایانو سره په ۱۲/۲/۲۰۱۹ م نیټه د مذاکره کوونکي پلاوي غړی هم وټاکل شو. نوموړی د بین الافغاني مذاکراتو لپاره د اسلامي امارت لخوا د ټاکل شوي پلاوي غړیتوب هم لري.

## محترم ملا نورالله نوری

محترم ملا نورالله نوري د مولوي غلام عمر الدین زوی د زابل ولایت د شاجوی ولسوالۍ د چشمه بهرام خیلو په کلي کې په کال ۱۳۵۰ هجري شمسي کې زیږیدلی دی. ابتدایي او لوړې زدکړې یې ټولې په هیواد کې دننه په مختلفو مدرسو اومساجدو کې ترسره کړي دي.

محترم نوري صیب په ګوانتنامو کې د قرآن کریم شل سیپارې حفظ وکړ او د خپلې مورنۍ ژبې پرته په فارسي اوعربي ژبو باندې رواني خبرې کولای شي.

نوموړی په ډیر کم عمري کې د پخواني شوروي یرغل پر خلاف په جهاد کې عملا برخه اخیستې او د حرکت انقلاب اسلامي تنظیم په چوکاټ کې یې سیاسي ژوند پیل کړی.

د هیواد څخه د شوروي یرغلګرو تر وتلو یو کال وروسته په ۱۹۸۹م کې نوري صیب د خپلې سیمې د مدرسو له طالبانو سره په ګډه د خپلې سیمې د نظم اومنکراتو څخه د مخنیوي په هدف یو اتحاد طلبه تنظیم جوړ کړ چې خپله نوري صیب یې د معاون په حیث وټاکل شو.

دغه اتحاد طلبه پنځه کاله دوام وکړ او په دغه دوره کې یې څیني مهم فعالیتونه ترسره کړل.

کله چې په کندهار کې دمرحوم مشر ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله له خوا تحریک شروع شو اوبولدک فتحه شو نو نوری صیب چې یوه میاشت مخکې یې د زابل په شاجوي ولسوالۍ کې ورته کار پیل کړی وو، مګر په زابل کې له چا سره مسلح جنګ ونشو، د خپل ولایت د طالبانو په نمایندګي له یو هیئت سره کندهار ته ولاړ او د مشر ملاصاحب سره ملګری شو او سمدستي دمرحوم ملا صیب لخوا په کارونو توظیف او د خپلو طالبانو سره یو ځای په نظامي کارونو بوخت شو.

نوری صیب د کابل تر فتحې مخکې په خوست ولایت کې د امنیه قومندانۍ معاون او د میدان وردګو ولایت د والي په حیث دندې ترسره کړې.

د کابل تر فتحې وروسته نوموړی د لغمان ولایت د والي په حیث دوه کاله وظیفه اجرا کړې، ورپسې د بغلان ولایت د والي په توګه یو کال او د اسلامي امارت د حکومت په آخري کلونو کې د بلخ ولایت والي او د شمال زون تنظیمه رئیس وو.

پر هیواد د امریکایي یرغل په دوران کې نوري صیب په شمال کې اسیر شو، دیارلس کاله او څو میاشتې په ګوانتنامو زندان کې بندي وو.

چې بالآخره د ۲۰۱۴ د جون په لومړۍ نیټه د طالبانو او امریکایانو ترمنځ د یوې تبادلې په نتیجه کې د څلورو نورو ملګرو سره یوځای ازاد او قطر هیواد ته انتقال شو.

نوموړی په ۲۰۱۸ کال کې داسلامي امارت د سیاسي دفتر غړی او په ۲۰۱۹ فبروري کې دامریکایانو سره د مذاکراتي ټیم غړی وټاکل شو. او اوس مهال د رهبري شورا غړی، د سیاسي دفتر غړی او د مذاکراتي ټیم غړی دی.

## محترم قاري دین محمد حنیف

محترم قاري دین محمد حنیف د مرحوم قاري محمد نذیر زوی په ۱۳۴۲ هجري شمسي کال د بدخشان ولایت د یفتل سفلی ولسوالۍ په سپین ارزنچي کلي کې زیږیدلی دی.

قاري صاحب په ۱۵ کلنۍ کې قرانکریم حفظ کړ او وروسته یې له خپل مرحوم پلار څخه ابتدایي زده کړې شروع کړې، نوموړی په همدغو زده کړو بوخت وو چې د ثور کرغیړنه کودتاه رامنځته شوه.

کله چې کمونیستان واک ته ورسیدل او ددوی پر ضد مقدس جهاد او وسله وال قیام پیل سو؛ دیني مدارس او دزده

کړو مرکزونه د همدغو دین دښمنه کمونیستانو لخوا معطل، تخریب او یا د جګړو له امله زیانمن شول.

بالآخره حنیف صاحب په ۱۳۶۴ کال کې همسایه هیواد پاکستان ته هجرت وکړ او هلته یې د خیبر پښتونخوا په مختلفو مدارسو کې خپل تحصیل ته ادامه ورکړه، د وړې دورې په شمول یې مروجه فنون تکمیل کړل او کله چې یې د دوره حدیث لپاره اراده وکړه په همدې وخت کې د هیواد د امنیت په موخه د طالبانو اسلامي تحریک پیل شو، قاري دین محمد حنیف د بدخشان د سلګونو نورو طالبانو په شمول د تحریک له کاروان سره ملګری شو او د کابل له فتحې وروسته د امارت د بشپړ حاکمیت تر پایه په ترتیب سره د پلان او لوړو زده کړو وزارتونو د وزیر په توګه پر مسئولیتونو پاتې شو.

له امریکایي اشغال او پر ضد یې د جهاد له پیل وروسته په ۲۰۰۳ میلادي کال د بدخشان د جهادي مسئول په حیث او په ۲۰۰۴ کال د سیاسي کمیسیون د غړي په توګه وټاکل شو، همدارنګه د عالیقدر امیرالمؤمنین مرحوم ملا محمدعمر مجاهد نورالله مرقده د فرمان په اساس د رهبری شوری غړی و ټاکل شو.

محترم قاري دین محمد حنیف په اوس وخت کې د رهبرۍ شوری او مذاکراتي ټیم غړی او په سیاسي دفتر کې د منځنۍ آسیا له هیوادونو سره د اړیکو د ادارې مسئول دی.

## محترم ملا عبداللطیف منصور

ملا عبداللطیف منصور د الحاج شهید یار محمد خوی د پکتیا ولایت زرمت ولسوالی د سهاک هیبت خیل په کلي کې کال ۱۳٤٦ هـ ش کې زیږېدلی دی. نوموړي تر پنځم ټولګي پورې د مکتب لوستلو ترڅنګ د لوېې دورې پورې دیني زدکړې کړې دي. له طالب علمي څخه په سیاست کې فعال وو، سیاسي ژوند یې د تنظیم طلبه حرکت انقلاب اسلامي افغانستان کې د دعوت تنظیم مسؤل په حیث پیل کړی. د مجاهدینو د بریا وروسته په کال ۱۳۷۱هـ ش کې کله چې جهادي مشر- مولوي نصرالله منصور په شهادت ورسید نو ملا عبدالطیف منصور صیب یې ځای ناستي او د پکتیا ولایت والي په حیث وټاکل شو. منصور صیب د طالبانو د تحریک په اوایلو کې په کال ۱۳۷۳ هـ ش کې د تحریک سره یوځای شو او په مختلفو دندو یې خدمتونه کړي. ۱۳۷۳ هـ ش د هلمند ولایت د مرستیال والی په حیث او همدارنګه مختصره دوره د کندهار ښاروال په حیث او ۱۳۷۵هـ ش د کرنې او مالداري د وزیر په حیث دنده اجراء کړې. پر هیواد د امریکایي یرغل وروسته محترم منصور په کال ۲۰۰۲م کې د رهبرۍ شورا غړی او د پکتیا ولایت نظامی مسؤل په حیث وټاکل شو. نوموړي تر ۹ کلونو پورې د پکتیا ولایت د نظامی مسؤل په توګه خدمت کړی. ددې نه علاوه منصور صیب د ننګرهار او لوګر ولایت د نظامي مسؤل په توګه هم دنده اجرا کړې، په ۲۰۰۸م کال کې د لنډې مودې لپاره یې د سیاسي کمیسون مشري هم کړې ده. مذاکراتي ټیم او قطر ته تر راتلو مخکې منصور صیب د مشرتابه دفتر رییس او بیا د زراعت او مالدارۍ کمیسون مشر پاتې شوی. په ۲۰۱۹ کال فبروري کې منصور صیب د امریکایانو سره د مذاکراتي ټیم غړی وټاکل شو او اوس مهال د رهبرۍ شورا غړی او د مذاکراتی ټیم غړی دی.

## محترم حاجی ملا شیرین اخند

حاجي ملا عبدالله حنفي مشهور په ملا شیرین اخند د حاجي ملا محمد ابراهیم زوی دکندهار ولایت د ژړۍ ولسوالۍ د سنځري کلي اوسیدونکی دی.

حاجي ملا صاحب خپلې لومړنۍ زده کړې په خپل کور کې له خپلو اکابرو څخه چې په سیمه کې په علم سره مشهور وه تر لاسه کړې، ددوی کورنۍ په علماوو سره مشهوره وه، نورې زده کړې یې د حدیثو تر دورې پورې له مختلفو استاذانو څخه په بېلابیلو وختونو او ځایونو کې تر لاسه کړي دي.

د زدکړو په جریان کې یې د حالاتو د تقاضاء او غوښتنې په اساس بیلابیل جهادي خدمتونه هم ترسره کول چې له امله یې د زده کړو تسلسل قطع شو، د مختلفو جهادي خدمتونو، مسئولیتونو او ملحوظاتو له امله یې و نسو کولای د ستاربندي وکړي.

کله چې روسانو ګران هیواد افغانستان اشغال کړ نوموړی مجبور شو چې دینی تعلیم ورته توقیف کړی، او د شرعي وجیبې د اداءکولو له امله یې د شوروي اشغال په مقابل کې جهاد پیل کړ.د جهاد پیل یې د کندهار ولایت د ژړۍ ولسوالۍ د تورطاق له غره څخه پیل کړ، لومړی د یوفرد او مجاهد په حیث وروسته یې د قومندان او یا مرستیال په حیث جهادي دندې ترسره کړې دي.

د اسلامي امارت په راتګ سره لومړی د یو فرد په حیث د طالبانو د اسلامي تحریک غړی شو، همدا راز یې خپل شخصي- تجارت هم پر مخ بیوه، خو کله چې د مرحوم امیرالمؤمنین ملا

محمدعمر مجاهد رحمه الله په کور باندې د دښمن لخوا يوه ستره چاودنه ترسره شوه، له هغه وروسته محترم ملا شيرين اخند د اميرالمؤمنين د امنيت ساتلو د مسئول په حيث وټاکل شو.

په ۲۰۰۱ م کال کې کله چې زموږ په هيواد د امريکا لخوا يرغل وشو، نو د امريکايانو په ضد يې په وسلوال جهاد او مبارزه پيل وکړ، لومړی يې د يو دلګۍ مشر په حيث جهاد ته ادامه ورکوله، وروسته د کندهار ولايت د ولايتي کميسيون مسئول، بيا په مرکزي نظامي کميسيون کې د لوېديځې حلقې د مسئول په حيث، بيا د هرات د والي په حيث، بيا د شمال او شرقي ولايتونو لپاره د عمومي نظامي کميسيون د مسئول په حيث جهادي دندې اجراکړې دي.

همدا ډول يې د اسلامي امارت د استخباراتو د کميسيون مسئوليت درلود، بيا يې د کندهار ولايت د والي او عمومي نظامي مسئول په حيث دنده اجراکوله، په عين حال کې يې د جنوب غربي ولايتونو لپاره د استشهادي کنډکونو د قومندان په حيث يې هم دنده درلوده.

په دا وروستيو کې د عاليقدر اميرالمؤمنين د حکم سره سم د اسلامي امارت په رهبري شورى کې د غړي په توګه او اوس دادى د مذاکراتي ټيم د غړي په توګه وټاکل شو، اوس د مذاکراتي ټيم د غړيتوب ترڅنګ د اسلامي امارت د رهبري شورا غړى هم دى.

## محترم شيخ مولوي محمد قاسم راسخ

شيخ مولوي محمد قاسم راسخ د ملا جمعه نظر زوى د جوزجان ولايت د فيض اباد ولسوالۍ د انبيکال قريه کې په کال ۱۳۵۰ هجري شمسي کې زيږېدلى دى.

لومړنۍ عصري او ديني زدکړې يې په هيواد کې دننه او لوړې ديني زده کړې يې د هجرت په ديار کې تر سره کړې دي. په کال ۱۴۱۶ هجري قمري کې يې د مظهرالعلوم دارالعلوم - صوابۍ څخه دوره حديث کړې.

شيخ صيب د خپلې مورنۍ ژبې (ترکمن) سربېره په پښتو، دري او عربي ژبو برلاسى لري.

نوموړى د ترکمن قوم يو مخور مشر، جيد عالم او د حديثو استاد دى.

شيخ قاسم راسخ د هيواد په مختلفو ديني مدارسو کې پنځلس کاله د شرعي فنونو او عربي لغت تدريس کړى دى.

همدارنګه د هجرت په ديار کې لس کاله د دارالحديث (لويه دوره) شيخ او مدرس پاتې شوى دى.

نوموړى د ۲۰۰۷م څخه بيا تر ۲۰۱۶ پورې د افغانستان اسلامي امارت د دعوت او ارشاد کميسون غړى او د جوزجان ولايت د همدې کميسون مسؤول پاتې شوى دى.

محترم شيخ صيب د ۲۰۱۶ څخه تر ۲۰۲۰م پورې د ختيځ او شمالي شلو ولايتونو لپاره د نظامي محکمې د مرافعې قاضې پاتې شوى.

نوموړى اوس مهال د افغانستان اسلامي امارت د رهبري شورا غړى او د مذاکراتي ټيم غړى دى.

## محترم مولوي فريدالدين محمود

محترم مولوي فريد الدين محمود د مرحوم مولوي محمد عالم زوي د پکتيکا ولايت مرکز شرڼې کې زيږدلى دى.

ابتدائي ديني زدکړې يې په هيواد کې دننه د خپل والد مرحوم او نورو جيدو علماء کرامو څخه کړې دي، نورې ديني زدکړې يې د پاکستان هيواد په کوهاټ او مردان سيمو کې کړې، د حديثو لويه دوره او فراغت يې د دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک څخه په کال ۱۳۹۶ هجري قمري شعبان مياشت کې شوى.

د داود خان د واکمني پر مهال د هجرت په ديار کې په کال ۱۳۹۵ هجري قمري د مرحوم مولوي جلال الدين حقاني او شهيد مولوي نصرالله منصور سره شناخته او ملګري شوى.

د مجاهدينو د بريا وروسته د پکتيکا ولايت والي پاتې شوى.

د امارت د واکمني پر مهال په کابل کې د اکاډمي علومو د بشري علومو د معينيت په صفت دنده اجراء کړې.

پر هيواد د امريکا تر يرغل وروسته محترم فريد الدين د تعليم تربيې بخش او همدارنګه د تميز رياست د غړي په حيث خدمت کړى.

مولوى فريد الدين صيب اوس مهال د مذاکراتي ټيم غړى دى.

## محترم مولوي مطيع الحق خالص

محترم مولوي مطيع الحق خالص د جهادي رهبر مولوي محمد يونس خالص رحمه الله زوى په قوم نبي خيل په۱۳۴۰ هـ ش کال د ننګرهارولايت خوګيانو ولسوالى قريه نکرخيل کې زيږدلى دى. لمړنۍ ديني زده کړي يې له خپل والد صاحب

رحمه الله او د خپلو دوه ترونو مولوی محمد یوسف او مولوی محمد اسحاق محق رحمهما الله تعالی ښخه حاصلي کړي او ابتدائیه او منځنۍ زده کړې يې په همغې منطقې په ښوونځیو کې ترسره کړي. د کمونستانو له کودتا ښخه وروسته د۱۳۵۷هـ ش کال د سرطان په میاشت کې ګاونډي هیواد پاکستان ته مهاجر شوی او پاتې دینی زده کړې يې د پښتونخوا په مختلفو مدارسو کې حاصلي کړي. همدارنګه په ۱۹۸۸م ۱٤۰۸ هـ ق کې د مدینې منورې له جامعې اسلامیې ښخه په شرعیاتو کې د لسانس ترکچې او د لاهور پنجاب پوهنتون ښخه په اسلامیاتو کې د ماسترۍ سند ترلاسه کړی. د دې سر بیره په ۱۹۹۰ او ۱۹۹۱ م کلونو کې د پیښور په امداد العلوم مدرسه کې د لويې دورې د حدیثو کتابونو لوستلو سعادت هم ترلاسه کړی. محترم مولوي صیب د قرآن کریم حافظ دی، نوموړی د خپلې مورنۍ ژبې سربیره په دري، اردو او عربي ژبو خبرې کولی شي. مولوی مطیع الحق خالص د ۱٤۰۸ هـ ق کال ښخه د الهجرة والجهاد په مدرسه کی داستاذ په صفت او بیا وروسته په اسلامی حزب کی د تعلیم اوتربیې د ریاست په چوکاټ کې د خارجي مؤسساتوسره د ارتباط د مسؤل په صفت دندې اجرا کړي. د شوروي اتحاد د اشغال او کمونستي نظام د سقوط ښخه وروسته د کال ۱٤۱۲هـ ق ښخه داستاذ برهان الدین رباني د دولت او بیا د اسلامی امارت د قیام په دوران کې دننګرهار ولایت د تعلیم او تربیې ریاست د معاون په صفت دندې اجراء کړي. د امریکا تر اشغال وروسته مولوي مطیع الحق خالص د خپل والد جهادي رهبر مولوی محمد یونس خالص رحمه الله په نقش قدم د جهاد لار خپله کړه او د مجاهدینو رهنمایي او د خلکو په هڅولو کې یی رغنده رول ولوبولو. مولوی صیب تیر کال د ۲۰۱۹م کال فبروري میاشت کې د امریکایانو سره د مذاکراتي ټیم د غړي په حیث وټاکل شو. نوموړی اوس مهال د سیاسي دفتر او د مذاکراتي ټیم غړی دی.

## محترم ملا خیرالله خیرخواه

محترم ملا خیرالله خیرخواه د مرحوم سید ولي زوی د کندهار ولایت ارغستان ولسوالي په ګوهري کلي کې زیږیدلی.

د کمونیستي کودتا وروسته په کوچنیوالي کي يې د خپلې کورنۍ سره پاکستان ته هجرت کړی او هلته يې د بلوچستان په سرانانو کمپ، د کوټې ښار، بیا د چراټ جامعه محمدیه او کوهاټ کې دیني زدکړې ترسره کړي دي.

ملا خیرالله خیرخواه د قرآن کریم حافظ دی، نوموړی د خپلې مورنۍ ژبې نه پرته په دري، عربي، انګلیسي- او اردو ژبو روانې خبرې کولی شي.

د شوروي پر خلاف جهاد کې يې عملا برخه اخیستې او بیا د طالبانو اسلامي تحریک د پیل سر سم د مرحوم ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ په هیواد کې د فساد د له منځه وړلو او امن راوستلو په هدف کار پیل کړ، د کابل له فتحې مخکې يې د طالبانو د ویاند په حیث دنده اجراء کړې.

د افغانستان اسلامي امارت د واکمنۍ پرمهال د کورنیو چارو وزیر او وروسته د جنوب غرب حوزې تنظیمه رئیس او د هرات د والي په توګه وظیفه اجراء کړې.

پر هیواد د امریکا د یرغل وروسته نوموړی په ۲۰۰۲م کال په پاکستان کې ونیول شو او بیا امریکایانو ته تر سپارلو وروسته په ۱/ ٥/ ۲۰۰۲م تاریخ د کیوبا ګوانتنامو زندان ته ولیږدول شو او هلته څه باندي دیارلس کاله بندي و.

ملا خیرالله خیرخواه په ۱/ ٦/ ۲۰۱٤م د یو امریکایي بندي سره د تبادلې په نتیجه کې د څلورو نورو طالب مشرانو سره یوځای ازاد او قطر ته انتقال شو.

نوموړی په ۲۰۱۸ کال کې د سیاسي دفتر او د امریکایانو سره د مذاکراتي ټیم د غړي په حیث وټاکل شو. او اوسمهال د سیاسي دفتر او د مذاکراتو د ټیم غړی دی.

## محترم شیخ مولوی شهاب الدین دلاور

محترم شیخ شهاب الدین دلاور د مرحوم مولوي سید اکبر دلاور زوی په ۱۳٤۱هـ ش کال د لوګر ولایت په مرکز کې زیږیدلی دی. دیني زده کړې يې له خپل پلار او د لوګر ولایت په مختلفو مدرسو کې ترسره کړي. د کمونیستي کودتا نه وروسته له خپلې کورنۍ سره پیښور ته مهاجر شو. په ۱۳٦۲هـ ش کال د اکوړې خټک له دارالعلوم حقانیه ښخه فارغ او د پیښور په مختلفو دیني مدارسو کې يې تدریس کړی. د طالبانو د واکمنۍ پرمهال په پیښور کې جنرال قونصل و، بیا په اسلام اباد او وریسې په سعودي عربستان کې سفیر پاتې شوی. دغه راز يې د سترې محکمې د قضایي مرستیال او د کندهار ولایت د تمیز ریاست دندې هم ترسره کړي. پر هیواد د امریکا تر یرغل وروسته نوموړی د سیاسي کمیسون غړی وټاکل شو. مولوی شهاب الدین اوس مهال په سیاسي دفتر کې د افغاني جهتونو سره د اړیکو د اداري مسؤل او د مذاکراتي ټیم غړی دی.

## محترم ملا عبدالحق وثیق

محترم ملا عبدالحق وثیق د ملا محمد سلیم زوي د غزنی ولایت د خوګیانی ولسوالۍ د غریب کلا کلي اوسیدونکی دی. ابتدایی زدکړې یې د خپل والد محترم سره او نورې دیني زدکړې یې د هیواد په مختلفو مدرسو کې حاصلې کړي، د لویې دورې ځیني کتابونه یې د هیواد په تاریخي پل خشتي جومات کې د ستر دیني عالم کوڼ اخندزاده سره ویلي. وثیق صیب د قرآن کریم حافظ دی او د عربي په شمول په دریو ژبو رواني خبرې کولی شي. نوموړي خپل سیاسي ژوند د طالبانو د اسلامی تحریک څخه پیل کړی دی او د تحریک په ابتداء کې د مرحوم ملا محمد عمر مجاهد سره ملګری شوی. وثیق صیب د طالبانو د حکومت په دوران کې مختلفې دندې ترسره کړې، په ابتداء کې د نیمروز ولایت د اطلاعات او کلتور ریېس، د کندهار ولایت امنیه قومندان، د کابل د فتحې وروسته د استخباراتو عمومي ریاست د کفیل او اوپراتوفي معین په حیث او همدارنګه په وروستیو وختو کې د کندهار ولایت د استخباراتو ریاست دنده هم اضافي ورسپارل شوې وه. ملا عبدالحق وثیق د کابل امنیتي کمیسون چې د هغه وخت معاون رئیس الوزراء تر مشرۍ لاندې و، غړیتوب درلود او سیاسي کمیسون چې د هغه وخت وزیر خارجه تر مشرۍ لاندې و، هم غړی پاتې شوی. پر هیواد د امریکا تر یرغل وروسته وثیق صیب د امریکایانو لخوا په غزنې کې ونیول شو او شاوخوا دولس کاله په ګوانتانامو زندان کې بندي و. د۲۰۱٤م د جون په لومړۍ نیټه د طالبانو او امریکایانو ترمنځ د یوې تبادلې په نتیجه کې د څلور نورو ملګرو سره یوځای آزاد او قطر ته انتقال شو. نوموړی په ۲۰۱۸م کال کې د طالبانو سیاسي دفتر غړی او په ۲۰۱۹م فبروري کې د امریکایانو سره د مذاکراتي ټیم غړي وټاکل شو. او اوسمهال په سیاسي دفتر کې د اروپایی هیوادونو سره د اړیکو د اداري مسؤل او د مذاکراتي ټیم غړی دی.

## محترم مولوی محمد نبی عمری

محترم مولوي محمد نبي عمري د حاجي محمد عمر زوي د خوست ولایت اسماعیل خیلو ولسوالی د شمشي- خیلو کلي کې په کال ۱۹۷۱م کې زیږدلی. نوموړي ابتدایي زد کړې په هیواد کې دننه کړي دي، د پخواني شوروي اشغال وروسته پاکستان ته مهاجر شوی او پاتې دیني زدکړې یې د هجرت د دیار په دیني مدرسو کې بشپړې کړې دي. د دیني زدکړو او وفاق المدارس سند ترلاسه کولو وروسته یې ٥ کاله تدریس کړی دی. عمري صیب د قرآن کریم حافظ دی او همدارنګه د پښتو او دري ژبو ترڅنګ په عربي ژبې بشپړ تسلط لري. عمري صیب خپل سیاسي او نظامي مبارزه د جهادي مشر محترم مولوي جلال الدین حقاني مرحوم تر مشرۍ لاندې پیل کړې وه. د شوروي پر خلاف یې عملي جهاد کړی او په مختلفو جنګونو کې پنځه وارې ټپي شوی. د کمونیستانو تر سقوط وروسته د پخواني ریيس جمهور استاد برهان الدین رباني په وخت کې نوموړي د اهل الحل والعقد شورى کې د خپلې ولسوالۍ په نمایندګۍ د وکیل په صفت ګډون کړی وو. عمري صیب د مجاهدینو په حکومت کې په کال ۱۹۹۲م کې د خوست ولایت د امنیه قومندانۍ معاون په حیث دوه کاله خدمت کړی او د طالبانو اسلامي تحریک چې لا کابل نه وو نیولی د زابل ولایت امنیه قومندان په حیث یې وظیفه اجراء کړې. د کابل تر فتحې وروسته عمري صیب د افغانستان د سرحدي قوه د عمومي قومندان په توګه وټاکل شو. پر هیواد د امریکا تر یرغل وروسته عمري صیب د ۲۰۰۲م کال سپتمبر میاشت کې د امریکایانو لخوا ونیول شو او شاوخوا دولس کاله په ګوانتانامو زندان کې بندي و. بلاخره د۲۰۱٤م د جون په لومړۍ نیټه د طالبانو او امریکایانو ترمنځ د یوې تبادلې په نتیجه کې د څلور نورو ملګرو سره یوځای آزاد او قطر ته انتقال شو. نوموړی په ۲۰۱۸م کال کې د اسلامي امارت دسیاسي‌دفترغړی‌او په‌۲۰۱۹م فبروري کې‌دامریکایانو سره د مذاکراتي ټیم غړي وټاکل شو. عمري صیب اوسمهال په سیاسي دفتر کې د ملګرو ملتونو او نړیوالو مؤسساتو سره د اړیکو د اداري مسؤل او د مذاکراتي ټیم غړی دی.

## محترم محمد سهیل شاهین

محترم محمد سهیل شاهین د مرحوم حاجي غلام محمد خان زوی د پکتیا ولایت د احمد ابا ولسوالۍ اوسیدونکی دی.

د کابل پوهنتون له انګلیسی ډیپارتمنټ څخه لیسانس او همدا راز په ژورنالیزم کې ډیپلومه لري. دیني زدکړې یې تر موقوف علیه دورې پورې کړې دي.

د پخواني جهاد پرمهال د فرهنګي مبارزې د ډګر فعال پاتې شوی او په ګڼو مجلو کې یې لیکنې خپرې شوي. نوموړی تکړه لیکوال دی او د پښتو سربېره په انګلیسي ژبه هم لیکنې کوي، همدارنګه د خپلې مورنۍ ژبې علاوه په دري، عربی انګلیسی او اردو ژبو رواني خبرې کوي.

د پخواني شوروي اتحاد په خلاف د جهاد په دروان کې د محترم مولوي نصرالله منصور د حرکت انقلاب اسلامي تنظيم اړوند مجلې (خدام الفرقان) او اخبار (TheVoice of Mujahid)مدیر او همدا راز د مجاهدینو د اوه گوني اتحاد لخوا د خپریدونکي مجلې (The Jihad Rays) مدیر پاتې شوی. نوموړي د مولوي نصرالله منصور د حرکت انقلاب اسلامي تنظیم د سیاسي کمیټې د مرستیال په توگه هم دنده ترسره کړې.

د افغانستان اسلامي امارت د واکمنۍ پرمهال د (The Kabul times)ورځپاڼې رئیس و. بیا په نیویارک کې د ملگرو ملتونو لپاره د افغانستان اسلامي امارت د نمایندگۍ مرستیال او وروسته په اسلام اباد کې د افغانستان اسلامي امارت سفارت د مرستیال په توگه وگومارل شو.

پر هیواد د امریکایي یرغل وروسته یې د اسلامي امارت په فرهنگي برخه کې فعالیت درلود او د الاماره ویبپاڼې د انگلیسي برخې مدیر پاتې شوی.

محمد سهیل شاهین صیب په سیاسي دفتر کې د ویاندۍ تر څنگ د مختلفو ادارو مشري کړې او اوس مهال د سیاسي دفتر غړی او د مذاکراتي ټیم غړی دی.



## محترم ملا محمد انس حقاني



محترم ملا محمد انس حقاني د ستر جهادي شخصیت محترم مولوي جلال الدین حقاني رحمه الله کشر زوي د پکتیا ولایت گرده څیرۍ ولسوالی د کنډو کلی اوسیدونکی دی چې په کال ۱۹۹٤ م کې زیږدلی دی. د مکتب لوستلو ترڅنگ یې تر ووړې دوري دیني زدکړې کړی دی. د خپلې مورنۍ ژبې نه علاوه په دوه نور ژبو هم خبرې کولی شی. د سیاست او کمپیوټر په برخه کې یې لنډمهاله روزنیز کورسونه کړی دی، لا د تعلیم مرحله یې بشپړه شوې نه وه چې د امریکایانو لخوا پداسې حال کې ونیول شو چې قطر هیواد ته د خپل یو عزیز د ملاقات لپاره تللی وو. شاوخوا ٥ کاله د بگرام زندان کې بندي و، د ۲۰۱۹م کال په نومبر کې د دوو بهرنیو استادانو سره د تبادلې په نتیجه کې د دوه نورو ملگرو سره یوځای ازاد او قطر ته انتقال کړل شو. نوموړی د ۲۰۱۹م کال فبروري کې چې لا په زندان کې و، د امریکایانو سره د مذاکراتي ټیم غړی وټاکل شو. انس حقاني اوس مهال په قطر کې د سیاسي دفتر مطبوعاتي ادارې غړی او ورسره د مذاکراتي ټیم غړی دی.



## محترم ډاکتر محمد نعیم



ډاکتر صاحب محمد نعیم د شهید ډاکتر آغاجان زوی، د میدان وردگو ولایت، د چک ولسوالۍ د عربانو درې د بهادر خان په کلي کې په ۱۳۵۳ هـ ش کال کې نړۍ ته سترگې غړولې دي.

په ۱۳۵۹ هـ ش کې یې چې کله والد مرحوم د روسانو او کمونیستانو له خوا په شهادت ورسول شو، لومړنۍ دیني زده کړې او د دري ژبې د نظم کتابونه یې له خپل اکا مرحوم ملا صاحب امیر جان څخه لوستي، ابتدایي عصري زده کړې یې دکابل ولایت په سپین کلي ښوونځي کې کړې دي، پاتې زده کړې یې د خپلې سیمې عربانو په لیسه کې او شهادت مدرسه کې وکړې او د قرآن کریم حفظ یې هم کړی.

د تعلیمي سلسلې جاري ساتلو په موخه په ۱۳۷۴- ۷۵ هـ ش کې گاونډي هېواد پاکستان ته لاړ، په ۱۳۷۸- ۷۹ هـ ش کې یې په پېښور کې د عربي ژبې او اسلامي زده کړو له پوهنځۍ څخه لیسانس تر لاسه کړ.

په ۲۰۰۴ یې په لوړ امتیاز (گولډ میډلست) د سره زرو مډال په تر لاسه کولو سره تکمیل کړه.

په همدې (۲۰۰۴) کال کې یې په نوموړي پوهنتون کې د دکتوراه مرحلې ته داخله وکړه، په ۲۰۰۵ کې یې درسونه تکمیل کړل، او په ۲۰۱۰ کې یې رساله تکمیل کړه، البته د رسالې مناقشه یې لا پاتې ده.

له پیله یې د عصري تعلیم تر څنگ له وخت نه په استفادې سره همهاله دیني زده کړې هم کولې،خصوصا په رخصتیو کې، په ۲۰۰۶ م کې یې په دار العلوم حقانیه کې دوره حدیث وکړه او د فضیلت پگړۍ یې وتړله، د یادونې ده چې په دوره حدیث کې تقریبا په نهه سوه فاضلانو کې یې لومړی مقام تر لاسه کړ.

له ۲۰۰۸ تر ۲۰۰۹ د اسلام آباد په نړیوال اسلامي پوهنتون کې تدریس کړی. او له ۲۰۰۹ تر ۲۰۱۱ پورې په پېښور کې د عربي ژبې او إسلامي زده کړو پوهنځۍ کې تدریس کړی.

د امریکایي یرغل له پیل سره سم داسلامي امارت په لیکو کې د زده کړې تر څنگ یې فکري، جهادي، فرهنگي او سیاسي فعالیت شروع کړی، او په دې لړ کې یې د دښمن له خوا د زندان سختۍ او تکالیف هم گاللي دي. له ۲۰۱۰ کال راهیسې د افغانستان اسلامي امارت په سیاسي دفتر کې په خدمت بوخت دی.



ابوظهيرم: شمس

# د اسلامي حاکميت جوړولو کړنلاره!

د اوږدې او تاريخي جهادي مبارزې وروسته امريکايي اشغالگر دېته اړ کړای شول چې له افغانستانه د خپلو اشغالگرو ځواکونو د يستلو په هوکړه ليک لاسليک وکړي، کوم سره سم چې دځواکونو عملي انخلاء هم پيل شوې ده.

د هوکړه ليک پر ژمنو که څه هم عمل سست روان و او کابل رژيم د بنديانو خوشي کولو پروسې دتکميل کېدو په وړاندې د خنډونو او موانعو ايجادولو ناکا مه هڅې وکړي، خو د فشارونو په نتيجه کې يې د هوکړه ليک له ژمنې سره سم ۵زره بنديان خوشي کړل او د بين الافغاني خبرو شروع کولوته يې په نه زړه لاره هواره کړه.

نو هغه و چې د روان ۲۰۲۰ز کال ستمبر په ۱۲مه نېټه د قطر په پلازمېنه دوحه کې دافغانستان اسلامي امارت دمذاکراتي ټيم او د نورو افغاني ډلو ټپلو نه د جوړ مذاکراتي ټيم ترمنځ د نړيوالو په حضورکې د مخامخ خبرو پرانيستنه وشوه.

له هغه راهيسې په رسنيوکې د اسلامي نظام او اسلامي حاکميت په اړه مختلف بحثونه او تبصرې جريان لري، ځيني افغانستان کې دنورې نړۍ پشان يو ازاد خيال او سيکولر نظام رامنځته کول غواړي او د غربيانو خوشالولو په خاطر د اسلامي نظام سره ځرګند مخالفت کوي، هغوی غربي ديمکراسۍ د يومثالي بشري نظام په توګه وړاندې کوي، او دمغرب پشان د ما در_ پدر ازادي ليوال او ار مانجن دي.

بلخوا د هيواد قاطع اکثريت مسلمانان په بيا کلکه د اسلامي نظام د نفاذ غوښتونکي او ارمانجن دي، د هغوی د ژوندانه لويه ارزو او هيله په افغانستان کې د راشده خلافت په څېر د يو عادلانه نظام جوړيدل دي.

ډېرى خلک په خولو د راشده خلافت نوم اخلي او د نفاذ غوښتنه يې کوي، خوکله نه کله هغوی د راشده خلافت ترعنوان لاندې ځيني نا اسلامي قوانين اسلامي تصور کوي،زکه هغوی اصلاً د راشده خلافت دسياسي معيارونو، ځانګړتياوو او اصولو په اړه کما حقه معلومات نلري، يوائې هم دومره پوهيږي چې راشده خلافت يو ښه ع نظام دی اوبس!له دې ور هاخوا د خلافت مفهوم، تعريف، تاريخ، شرعي حکم او عملي کړنلاره يې نه پيژني،تردې پورې چې دا ستونزه يوائې ترعامو وګړو پورې محدود نده بلکې ډيری خواص مو هم په دې برخه کې د معلوماتو د فقر ښکاردي،په خواله رسنيو کې موږهره ورځ وينو چې ځيني جذباتي مبارزين اکثر د خلافت په نامه غير شرعي مواد او افراطي پوستونه نشرکوي، او هغو ته کمپاين جهاد اواسلامي مبارزه تصورکوي بناً په دې ليکنه کې موږ هڅه کوو څو د راشده خلافت د تعريف او مفهوم بيانو لو سربيره په لاندې د رې خبرو هم بحث راټول کړو:

لومړی :د اعتقادي او شرعي اړخه دخلافت اعتقادي اهميت او شرعي حکم بيانول!

دوهم : له تاريخي پلوه خلافت کله پيل شو، څنګه او کله پای ته ورسيد؟

دريم: ايا په اوسني وخت کې د اسلامي خلافت يا اسلامي حاکميت جوړولو لپاره کومه عملي کړنلاره هم شتون لري؟

### د خلافت: مفهوم او تعريف:

تر ټولو دمخه د خلافت مفهوم څه دی؟ او هرکله چې دا لفظ و يل کېږي مراد ورځخه څه کيدای شي؟ د خلافت لفظي معنی ده «نيابت ـ ځای ناستی»

په عظيم الشان قرآن کې د خلافت لفظ ترټو لو د مخه حضرت ادم عليه السلام باره کې د بشري نسل لپاره کارول شوی دی، کله چې الله تعالی فرښتو ته و فرمايل: زه، زمکه کې خليفه جوړونکی يم( البقره) دلته خليفه نه مراد حضرت ادم عليه السلام او د هغه نسل دی يعني د دې ارضي کائنات نظام الله تعالی بشري نسل ته سپارلی دی

او هغه د دې نظام په چلولو کې د الله تعالی نایب دی، د خلیفه لفظ په قرآن پاک کې د حضرت داود علیه السلام په باره کې هم استعمال شوی دی، څوک چې د بني اسراییل لپاره پیغمبر او د هغوی پاچا و، الله تعالی ورته وفرمایل: اې داوده! ته! موږ په ځمکه کې خلیفه ګرځولی یې، د خلکو ترمنځ فیصلې په حق سره کوه او د هوس پیروي مه کوه (ص) په هر صورت دخلافت معنی نیابت دی او معنی یې داده چې بشري نسل په دې ارضي کائنات کې خپلواک او ازاد نه دی؛ او نایب دی، او د خپلې کارې دایرې د واکونو په محدوده کې پابند او تړلی دی.

عظیم الشان قرآن دامفهوم په بل انداز هم بیان کړی دی کله چې حضرت ادم علیه السلام او حضرت حوا جنت نه ځمکې ته ښکته لیږدول کیدل، الله تعالی هغوی ته وفرمایل:تاسو! دواړه ځمکې کې ښکته شئ، پس زموږ لخوا به تاسو ته هدایت درځي، چا چې د هغه پیروي وکړه هغه به له غم او ډار نه نجات و مومي او چا چې تړې انکار وکړ،هغه به د اور سون توکي وګرځي( البقره)دا هم د خلافت یو تعبیر دی، چې د نیا کې بشر پخپل ژوند کولو کې مطلقاً ازاد یا خپلواک ندی، بلکې د اسماني لاربښو ونو تابع دی، کومې چې د انبیاء علیهم السلام په زریعه رالیږل شوي دي او د وحې په صورت کې له ادم علیه السلام نه شروع او په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم مکمل شوي دي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم په ګڼو ارشاداتوکې دخلافت لفظ استعمال کړی دی، دبخاري شریف په یو روایت کې دا تول سیستم بیان شوی دی: چې بني اسراییل کې به سیاسي قیادت د پیغمبرانو علیهم السلام په لاسونو کې وو، کله به چې یو نبي رخصت شو، دهغه پر ځای به بل نبي راغی، او روستی نبي زه یم ، له ما وروسته بل نبي نه راځي، البته له ما وروسته به خلفاء وي،په دې ارشاد کې رسول الله صلی الله علیه وسلم خلافت د سیاسي قیادت په معنی کې بیان کړی دی او د ا یې هم ښکاره کړې ده چې له ما وروسته به سیاسي قیادت او واکمني د خلفاوو په لاسونو کې وي.

همدبته په کتو حضرت امام شاه ولی الله دهلوي پخپل مشهور کتاب ازالة الخفاء کې چې د خلافت کوم تعریف کړی دی، هغه کې یې خلافت د رسول الله صلی الله علیه وسلم په نیابت سره تعبیر کړی دی، هغه فرمایي: خلافت دهغه عامه اقتدار یا واک نوم دی، کوم چې به تولنه کې د دیني چارو قایمولو مسؤلیت سرته رسوي، د امنیت راوستلو چارې به تنظیموي ، خلکو ته به انصاف رسوي، د اسلامي احکامو نا فذولو مسؤلیت به پوره کوي، د جهادي فریضې اداء کولو اهتمام به کوي، د دې ترڅنګ حضرت شاه ولی الله فرمایي: چې "نیاباتاً عن النبي" عامه واک به د رسول الله صلی الله علیه وسلم دنایب په حیث وي! ګواکې زموږ د خلافت مقصد دادی چې د مسلمانانو سیاست، قیادت، او واکمني به د رسول الله صلی الله علیه وسلم دنائب په توګه سرته رسول کېږي، همدا وجه وه چې لومړي خلیفه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته « خلیفة رسول الله» ویل کیدل، زکه د ا میر المؤمنین اصطلاح وروسته د حضرت عمر رضی الله عنه په دور کې دهغه لپاره غوره کړای شوه.

## تاریخي کشمکش:

دلته مناسب ده پر هغه تاریخي کشمکش هم یو ځغلنده نظر واچوو، کوم چې دبشري نسل د پیل نه د خلافت او بشري ذهن د زیار او کوښښ ترمنځ رامنځته شوی، اوتر نن پورې په شد و مد سره جریان لري، د بشري نسل د پیل نه ترننه په بشري تولنه کې چې کومو قوانینو او ضوابطو واکمني کړې ده هغه په اساسي توګه په دوه ډوله دي:

۱ــ یوپلو ته د ژوندانه هغه نظامونه دي کوم چې بشري ذهن پخپله تشکیل کړي دي،او په مختلفو صورتو نوکې یې په بشري تولنو واکمني کړې ده، په هغوکې کورني شاهي رژیمونه، شخصي ــ امپراطوری،،جماعتي اوحزبي امپریتونه،اوقبیلوي برلاسي هم رازي،په ورته توګه د ځینو قومونولخوا د واکمنې لپاره ځانونه مختص کول هم په دې کې راځي، خو د اتول د بشري ذهن زیږنده دي؛چې کله پکې شخصي ذ هنیت اغیز لاره، کله به پکې داجتماعي ذهن رول و، او کله به پکې قبیلوي او طبقاتي ذهنیت مؤثر و، د دې تولو مرحلو نه په تیریدو اوس بشري ذهن د مغربي جمهوریت یا ولسواکي په صورت کې د خپل عروج تر پولو رسیدلی دی، کوم چې د دې پورته یادو مرحله وار نظامو نو پرمختللی او ورو ستی صورت دی، او پخپله د مغربي مفکرینو په قول:اوس له دې وروسته بشري ذهن له دې څخه غوره نظام نشي وړاندې کولی، کوم چې هغوی په « ایند آف هستري» سره تعبیر وي.

۲ــ بل پلو ته په الهي وحې بانـدې ولاړ نظام دی، کـوم چـې د ادم علیه السلام څخه پیل شوی او په حضرت محمد صـلی اللـه بانـدې دنازل شوې وحي په صورت کې مکمل شوی دی او عملي تعبیر تـرې په راشده خلافت سره کېږي.

یاد دواړه نظامونه مکمل شوي دي او هریو خپلـې، خپلـې انتهاتـه رسیدلی دی،اوس د دواړو ترمنځ د وروستۍ مقابلې میدان دی، تـرمنځ یې فاینل لوبه روانه ده، له دې دواړو څخه هریوه چې برى ترلاسه کـړ، هغه به په بشري تولنـه واکمنـې کـوي، دا د تـاریخ فیصـله ده، د تـاریخ عمل دی، هیڅوک دا گرځولی نشي، زمـوږ پـه دې ایـمان دی چـې پـه دې مقابله کې به وروستی برى د اسلام وي، د خلافـت بـه وي، د الهـي وحي به وي، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ارشاد سره سم بـه د دې مقابلې وروسـته د اسـلام غلبـه وي! او يـو وخـت بـه داسـې هـم راځي، چې د زمکې پر مخ به د «لا اله الا الله» ویونکـو نـه عـلاوه بـل څوک شتون نلري دا دور به په هرصورت راځي او د رسـول اللـه صـلی الله علیه وسلم دا ارشاد بـه پـوره کېـږي، خـو د دینـه وړانـدې يـو اوږد کشمکش او تاریخي ټکـر اولـوی تصـادم بـه ضرور رامنځتـه کېـږي او وروستۍ فیصله کوونکې مرحله راتلونکې ده چې د هغې نه پـه تیریـدو سره به موږ د خلافت او اسلامي حاکمیت دورته ننوزو. ان شاء الله.

## د خلافت شرعي حکم :

د خلافت د مفهوم او تاریخي کشمکش په اړه د یا دونې وروسـته موږ د هغه شرعي حکم لورته درومو،کوم چې فقهاوو په ښه وضـاحت سره بیان کړی دی، بالخصوص امام ولی الله دهلوي وربانديِ ښـه پـه تفصیل سره رڼا اچولې ده، فقهاوو د خلافـت قـایمول واجـب بللـي، او امام ابن حجر مکي پخپل کتاب « الصواعق المحرقـه»کـې ورتـه «اهـم الواجبات» ویلي،یعنې دټولو واجباتو نه قوي واجب؛ دهغه په وینـا:چې صحابه وو په نزد، دې واجب دومره اهمیت درلـود، چـې د رسـول اللـه صلی الله علیه وسلم د تجهیز و تکفین څخه يـې هـم مقـدم وگڼـه او د رسـول اللـه صـلی اللـه علیـه وسـلم د و صـال وروسـته صـحابه وو سملاسي لومړی خلیفه ( حضرت ابوبکر صدیق رض) غوره کـړ اوبیـا یې د رسول الله صلی الله علیه وسلم تجهیز و تکفین وکړ.

حضرت امام شاه ولی الله دهلوي په ازالة الخفـاء کـې تـر قیامتـه مسلمانانو لپاره فرض کفایې گرځولی دی، یعنې که د نړۍ په هـیڅ يـوه برخـه کـې د خلافـت نظـام شـتون و نلـري، لـه املـه يـې د ټـولې نـړۍ مسلمانان گناه گاردي، حضرت شاه ولي الله دهلوي دشرعـي خلافـت قایمولو په وجوب لاندیني درې دلایل وړاندې کړي دي:

لـومړی دلیـل: د رسـول اللـه صـلی اللـه علیـه وسـلم د و فـات وروسته دصحابه وو لـومړی اجـماع دخلافـت پـه جوړولـو شـوې، او هغوی د رسول اللـه صـلی اللـه علیـه وسـلم د تجهیـز وتکفیـن څخـه وړاندې دخلیفه ټـاکلو او اسـلامي حاکمیـت د رامنځتـه کولـو فریضـه سرته ور سوله.

دوهم دلیل: حضرت شاه صیب رحمه اللـه د رسـول اللـه صـلی الله علیه وسلم دا ارشاد وړاندې کوي: چې هر شخص مړشو او دهغـه په غاړه کې بیعت نه و، هغه د جاهلیـت پـه مـرگ بانـدې ومړ،حضرت امام ولي اللـه دهلـوي دلتـه دبیعـت نـه مـراد دخلافـت بیعـت اخـلي او دهرمسلمان لپاره يې ضروري گڼي.

دریم دلیل: شاه صیب وایي: کوم کارچې د یو فرض د اداء کولـو لپاره ضروري وي، هغه هم فـرض گرځـي، مـثلاً: او دس فـرض نـدی، خو د لمونځ د اوداسه پرته نه کېږي، نـو پـه دې وجـه د لمانځـه لپـاره او دس هم فرض گرځي، همدا راز په ټولنه کـې داسـلامي ارکـانو قیـام، د جهاد اهتمام، د قضائي نظام قیام، امنیـت قـایمول،او د اسـلامي علومـو احیا، داټول فرایض دي،او د دې ټولو فرایضو اداء کـول د خلافـت قیـام پرته امکان نلري ، له دې وجې د خلافت قیام د دې یـادو مقاصـدو لپـاره هغسې فرض دی څنگه چې د لمانځه لپاره او دس فرض دی.

## د خلافت ( اسلامي حاکمیت) سیاسي اهمیت:

دخلافت دشرعي اهمیـت یـا حکـم سربیـره د خلافـت یعنـې د اسلامي حاکمیت سیاسي اهمیت ته پـام گرځـول هـم اړیـن دي،اوپـه دې لړکې يـوه واقعـه لـه دې وجـې د پـام وړده،چـې ور سره د اسـلامي حاکمیت سیاسي اهمیت پیژندنه په اسانه کیدای شي، کله چې په هنـد انگریزان واکمن وو، هغوی نه د ازادۍ ترلاسه کولو مخکښ قاید شـیخ الهند مولانا محمودالحسن دیوبندي رحمه الله په مالټـاکې قیـدي و، ور سره شیخ الاسلام مولانا حسین احمد مـدني هـم بنـدي و، او هلتـه يـو انگریز صاحب منصب هم دکوم جرم له امله دبنـد سـزا لنـډ و لـه، او دا هغه زمانه وه چې دترکیې عثماني خلافت کوم چې شاوخوا پنځـه سـوه کاله داسلامي نړۍ قیادت او رهبري کړې وه، وروستۍ سـلگۍ کـولې او د برتانیې، فرانسـې ایټالیـا پـه گـډون ټولـه اروپـا د هغـه ( خلافـت ) د رنگولو په سازشونو بو خت وو، یوه ورځ مولانا حسین احمد مدني لـه

انګریز صاحب منصب نه و پو ښتل:تاسو دیو کمزروي او تش په نامه حکومت په ړنګولو پسې ولې دومره جدي یاست؟ ایا تاسو له عثماني خلافت نه هم ډار احساسوئ؟ په ځواب کې هغه انګریز وویل: داخبره دومره ساده هم نده څومره یې چې ته ګڼې! دا سمه ده چې عثماني خلافت اوس مهال یو کمزوری حکومت دی، پخوانی رعب او دبد به یې پاتې نده، خو یو ځواک له هغه سره اوس هم شته او هغه دی د «خلافت لفظ» او د«امیر المؤمنین اصطلاح» زکه چې د خلافت په لفظ کې دومره ځواک دی که دخلیفه له لوري د هرکافر پخلاف د جهاد اعلان وکړای شي، نو د ټولې نړۍ په مسلمانو ځوانانوکې به جهادي ولولې او جذبې په غورځنګ راولې او یو جذباتي کیفیت به رامنځته کړي، موږ د دې ځواک څخه ډاریږو، او په دې وجه هغه دلمنځه وړل غواړو، نو رښتیا هم انګریزانو د عثماني خلافت په ضد سازشونه وکړل، هغه یې ړنګ کړ، دهغه وروسته د مسلمانانو د سیاسي مرکزیت په عنوان بله کومه مرجع پاته نشوه، په سبب یې مسلمانان نړۍ کې د پراخ انتشار او افتراق ښکار شول

## د خلافت ( اسلامي حاکمیت) تاریخي اړخ:

داسلامي خلافت تاریخي اړخ دا دی چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دیرش کاله وروسته د راشده خلافت دوره وه، کومه چې د خلافت مثالي دوره وه، د هغه وروسته د عامه خلافت دوره شروع شوه، حضرت شاه ولي الله رحمه الله فرمایي: د راشده خلافت دوره تریرش کلو غځیدلی شوه، زکه چې د هغه وروسته د سختو شرایطو حاملین اشخاص پاته نشول، وروسته دعامه خلافت دوره راغله، په کومه چې د راشده خلافت اطلاق نه کېږي، خو د دې دا مطلب هیڅکله ندی چې وروستي خلافتو نه ( معاذ الله)غیر اسلامي وو، بلکې وروستي خلافتو نه اسلامي وو، د امت ټولو علماوو په هر وخت او هره زمانه کې هغه منلې دي او په هغوکې:

لومړی د بنو امیه وو خلافت و، کوم چې د حضرت امیر معاویه رضی الله عنه څخه شروع او ترنوي کلونو یې دوام وکړ.

۲- د بنو امیه خلافت له خلیفه «مروان ثاني» څخه عباسیانو خلافت واخیست، په دې سره اموي کورنۍ هسپانیې ته هجرت وکړ،او هلته یې شاوخوا اته سوه کاله د خلافت بیرغ پورته کړی و، د عباسي خلافت پیل له سفاح نه و شو او نیږدې پنځه سوه کاله قایم و، تردې چې د مستعصم با الله په دورکې هلاکوخان د بغداد ړنګولو څخه وروسته عباسي هم خلافت ړنګ کړ.

له هغه وروسته بنوعثمان دخلافت بیرغ پورته کړ، هغوی ترکان وو، الله تعالی هغوی د اسلام او مسلمانانو د سیاسي خدمت لپاره غوره کړل،سلطان عثمان اول د خلافت اعلان وکړ، او هم د هغه په نوم باندې عثماني خلافت ونومول شو، دخلافت دا دوره شا و خواپنځه سوه کاله وغځیده او د دې سلسلې وروستۍ خلیفه سلطان عبد الحمید و، څوک چې په ۱۹۲۴ زکې دنوې ترکیې مؤسس مصطفی کمال اتاترک لخو جلا وطن کیدو وروسته، هغه( کمال) د خلافت پای اعلان کړ.

غرض داچې د راشده خلافت دیرش کلنې دورې وروسته د حضرت معاویه رضی الله عنه څخه له دورې نه د عامه خلافت پیل شوې دوره د ۱۹۲۴ زک دمارچ تر ۳مې نیټې وغځیده، په دې دوره کې ښه واکمن هم راغلي دي، اوبدان هم، خو په ټو لیزه توګه دعامه خلافت دورې تسلسل هم د مسلمانانو لپاره یو سترغنیمت و، بالخصوص په ځینو دورو کې د ټولو نیمګړتیا وو او خرابیو باوجود د عامه خلافت په دیارلس سوه کلن دورکې قضائي نظام ډیر شاندار و، په محاکموکې دقران و سنت په احکامو پرته له کومه ډاره عمل روان و، همدا راز دجهاد تسلسل هم په هره دوره کې روان و، کوم چې په دنیا کې دمسلمانانو د رعب او دبدبې زریعه دی، په دغه موده کې د راشده خلافت پلازمینه مدینه منوره، او د څه وخت لپاره کوفه وه او د بنوامیه وو دخلافت پلازمېنه دمشق و، د بنوعباس دخلاف مرکز بغداد و، او عثمانیانو د قسطنطنیه فتح کولو وروسته هغه تاریخي ښار خپله پلازمېنه وګرځاوه، کوم چې تر ۱۹۲۴ پورې پاته و.

## دخلافت ( اسلامي حاکمیت) د بیا جوړولو اړتیا:

اوس موږ د دې نکتې په لور زو، چې په اوسني وخت کې د اسلامي خلافت د بیا احیا کولو اهمیت څه دی؟ او د هغه لپاره د مبارزې تګلاره او کړنکلاره څه ډول کیدای شي؟علماوو لیکلي چې خلافت ژوندي کولو لومړی صورت دادی چې دایوه اجتماعي فریضه ده، د اداء کولو پرته یې دنړۍ مسلمانان ګناه ګار او د شرعي فرض تارک دي،بیا یواځې د دې یوفرض تارک نه دي، بلکې د خلافت په زریعه د اسلامي احکامو د نفاذ، د اعلاء کلمة الله، د جهاد ،قضا او دهغو فرایض چې سرته رسول یې لازمي دي هم تارک دي، او د دې

ټولو فرایضو دېرښنو دو مسؤلیت په دوی دی، پردې علاوه نړی کې دمسلمانانو د سیاسي وحدت، او مرکزیت جوړولو یواځینی زریعه خلافت یا اسلامي حاکمیت دی، او د تیرې پیړی تجربو وښوده چې دسیاسي وحدت او مرکزیت پرته اسلامي نړی د ټولو وسائلو او صلاحیتونو د لرلو باوجود دخپلې یوې مسئلې دحل کولو موقف هم نلري، په دې وجه نن سبا داسلامي نړی ترټولو لویه او اهمه مسئله داده چې دخلافت یعنې داسلامي حاکمیت د احیا اوقیام لپاره کوم ممکن عملي صورت رامنځته کړای شي .

## داسلامي خلافت ( اسلامي حاکمیت) د رامنځته کولو عملي کړ نلاره:

د خلافت د انعقاد لپاره فقهاوو چې کوم صورتونه راوړي هغه په ټوله کې پنځه دي:

۱ــ د عامو مسلمانانو په رایه دخلیفه انتخاب کول لکه حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه چې غوره شوی و

۲ــ دوهم دا چې د وخت خلیفه کوم اهل شخص له ځان وروسته ځای ناستي غوره کړي لکه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه چې حضرت عمر رضی الله عنه نومولی و.

۳ــ د وخت خلیفه یوه خصوصي کمیټه د دې لپاره وګوماري چې هغه خلیفه غوره کړي لکه حضرت عثمان رضی الله عنه چې غوره شوی و

۴ــ دشوری لخوا یوتن خلیفه غوره کړای شي لکه علی رضی الله عنه چې دشوری دغړو لخوا غوره کړای شوی و.

۵ــ یا داچې یو اهل شخص پورته شي دځواک او تدبر په کارولو سره خلافت قبضه کړي او امت هغه قبول کړي لکه دحضرت حسن رضی الله عنه لخوا دامیر معاویه رضی الله عنه سره دبیعت وروسته د هغه په خلافت دمسلمانانو اجماع راغله.

### یوه د پام وړ نکته:

په پای کې موږ غواړو د یوې اهمې نکتې ته څېرنه وکړو، هغه داچې ۱۹۲۴ز پورې دخلافت سلسلې منلو باوجود موږ ته پکار دي چې د خلافت (اسلامي حاکمیت) نظام په جوړولو کې یواځې راشده خلافت معیار وګرځوو، زکه د هغه وروسته خلافتي نظامونه پوره رهنمائي نشي کولی اونه د راشده خلافت د اصولو ته د مخامخ رجوع کولو پرته موږ د مغربي جمهوریت مقابله کولی شو، د حکومت په جوړولوکې د عام سړي برخه،د وخت په حاکم باندې دتنقید حق،درایې ازادي، او د وخت د خلیفه نه په ښکاره دخپل حق غوښتلو لرکې چې کوم معیارونه د راشده خلافت په دوره کې مندل کېږي، هغه په را وروسته دورو کې نه مندل کېږی، او هم هغه معیارونه دي چې په وړاندې کولو سره یې موږ نن ورځ د مغربي جمهوریت مقابله کولی شو، په خاصه توګه په دوه معاملوکې د راشده خلافت طرزالعمل ژوندی کول اړین دي:

یو دا چې د حکومت په تشکیل او د خلیفه په غوره کولوکې دعام سړي رایه اهمیت لري،څنګه چې دبخاري شریف د یو روایت له مخې: حضرت عمر رضی الله عنه وفرمایل: خبر اوسئ! دخلکو دمشورې پرته د خلیفه دبیعت نوم وانخلئ،هر چا چې داسې وکړل د هغه خبره ونه منئ!

او دوهم د حکومت او نظام په چارو کې د خلکو سره د مشاورت نظام، دکوم اهتمام چې پخپله رسول الله صلی الله علیه وسلم کاوه، او د رسول الله مبارک سنت دا و چې په اجتماعي معاملاتوکې به یې خلکو سره مشاورت کاوه، لکه د بدر، احد او احزاب غزواتو په اړه احایثوکې شتون لري، تردې چې په حنین کې یې د بندیانو خوشی کولو په اړه د مشاورت پر مهال د خلکو د زیات شمیر په وجه عرفاء یعنې خلکونه یې د هغوی د استازو په زریعه دهغوی د رایو معلومولو فیصله وکړه.

غرض داچې په اوسنیو شرایطو کې موږ چې کله د سیاسي نظام طی کولو لپاره خبرې اوبحثونه کوو،نو راشده خلافت به دلارې مشعل اومعیارګرځوو،په داسې کولو سره به موږ وکولی شو چې یوخواد مغربي جمهوریت مقابله وکړواوبل خواته به یو غوره نظام نړی او خپلو خلکوته وړاندې کړای شو او هم به دوخت د ټولو ننګونو او چیلنجونو مقابله هم په سمه توګه وکړای شو.

په پای کې دالله رب العزت نه غواړو چې موږ ته دي توفیق راکړي چې خپل هیواد او خلکو ته په ریښتنې بڼه اسلامي نظام او سوله را ولو اود هغه نظام نه دي د اجتناب توفیق را کړي کوم چې د قرآن وسنت، او راشده خلافت سره په حقیقي توګه سمون و نلري امین یا اله العالمین.

# د میزان تر ۶ مې وړاندې کیسې....!!

موسی فرهاد

د مجاهدینو د انقلاب بریا ته افغان ولس ډېر خوشحاله وو، تر دې وړاندې چې د شوروي یرغلگرو او د هغوی د لاسپوڅو لخوا پر ولس ځومر مظالم تېر شوي وو؛ کیسې یې آساطیرالأولین غوندې ښکاري. له همدې خایه وه چې ملت په مجاهدینو پوري خپل زړه تړلی و.

مگر متاسفانه چې مجاهدین په خپل امتحان کې سخت ناکام راوختل. هغه په دې چې ریښتیني وطن دوست او دین دوست مجاهدین ونه توانیدل ترڅو شریر، پردیپال، د قدرت او مال وږي عناصر چې د مجاهدینو په لباس کې وو: کابو کړای شي، همدا وجه وه چې اصلي مجاهدین شا ته او مفسد عناصر را میدان ته شول.

د سره شوروي له اشغال څخه د آزادۍ تاریخي فتح او د افغانانو ارمانونه یې نه یوازې داچې په اوبو لاهو کړل؛ بلکي ولس یې د آنارشیزم په بدترین عذاب کې مبتلا کړ.

پر کابل د تنظیمي لندغرو، کمونیستي بقایاوو، گیلم جمې او رقص مرده ملیشو خونړۍ راج یو ناځاپه داسې حاکم شو چې د کابل ولس لکه د وږي لیوه خولې ته چې برابر شوی وي، هره شیبه یې د مرگوني خنکندن غوندې تیریدله.

د مجاهدینو په لاس د کابل د فتحې کیسې ډېرې خلک کوي، شهرت ننگیال چې د هغه مهال ډېر داستانونه یې په غیرمرتب ډول په خپل یو کتاب کې را غونډ کړي؛ څو پراگرافونه یې دلته د بیلگې په توگه د دې لپاره راوړو چې د نوي نسل خوانان نور واقعي حالات ورڅخه اټکل کړای شي.

ننگیال، (د تاریخ پور) تر سرلیک لاندي یوځای لیکي: ... کابل د قیامت ننداره وړاندي کوي، قاتلان، مجرمان، جنگي بدغوني او د جهاد له نوم نه گټه اخیستونکي بدماشان د مرگ په ویش بوخت او د لوټ تالان په مسابقه لگیا دي. د خلکو پر ژوند، مال او برخلیک یې قبضه ټینگه ده، جگړه مارو د خپل هیواد او خلکو پرضد جگړه غځولې، د تاریخ پر وړاندي یې وسله پورته کړې، د تاریخ د دښمنی پور یې پر غاړه دی. د ملي موزیم آثار د لوټ او تالان کومي ته لویدلي.

د افغانستان د لرغونو آثارو پیر و پلور او قاچاق یو خانگړی نامشروع اقتصاد رامنځ ته کړ، د پیښور د مالگو منډۍ مارکیټ د افغاني لرغونو آثارو تجارت په ټوله نړۍ کې مشهور کړ. لنډه دا چې کابل د سیاسي اقتدار د وزلوبي خونړۍ ډگر گرځیدلی. د مجددي، رباني، مسعود، حکمتیار، دوستم، سیاف، مزاري ترمنځ د اقتدار په لوبغالي کې درز او غپ روان دی.

په کابل کې هر ببر سری او وسلوال گلم جم دی، د اسلامي دولت هر یریخی او امنیتي مسئول د لوټ او تالان په ښار کې دی. ډېر خله چې د راکټونو د ډزو په لړه وقفه کې یو سر وهلی، بر وهلی کابلی د یوې گولۍ مرۍ پیدا کولو په خاطر له کوره ووځي، پر اوږه به یې چا لاس ور کیښود، د کلاشینکوف میل به یې ډډې ته ونیول شو، د سترگو په رپ کې به یې هغه د یوې مرۍ ټوله متاع تري لوټ کړه.

بل ځای لیکي: زه او څو ملگرو مو ارگ ته د تللو سلا وکړه، کله چې ارگ ته نږدې شو، په لاره کې مو بل رنگه څیرې او کیسې ولیدي، د ارگ ساتونکي ډلې ډلې پنډ وو، عجیبه ردي بدلي دریشی به یې اغوستې وې، د چا به د اوسپنې خولۍ پرسر وه او چا به لوی ببر سر و، چا به پکول او چا به له سره یوه ریښکۍ تاو کړې وه، له هیبته یې د انسان غوني زیره کیدلو.

لږ مخکې چې ولاړو د ارگ ښه سپیره الوتې، د ننه د سړک دواړو خواو ته د خښتو ټوټې، وچ خس او خاشاک او د کاغذونو ټوکړې، پلاستیکي کڅوړې پرتې دي چې باد یې یوه او بله خوا الوزوي.

د ارگ ښه دننه چې ورغلو زیات بیروبار دی، څو بیروبار د مراجعینو نه بلکې ټول غوبل وسلوالو ساتونکو جوړ کړی و، چې ټول په یوه خوله نه وو، هر یوه خان ته مخابره او وسله درلوده ، هر یو به پرخپل سر لگیا وو.

له مشرانو سره د ملاقات چانس ناشونی وو، بیرته را ووتلو... بیا لیکي: د پلخشتي جومات خواکې گلم جمې وسلوالو را وگرځولو، له پوښتنې گرویږنې پرته یې ټانگ ته په زور او کونداغونو وهلو وخیژولو، د مرنجان غونډۍ په یوه زیرخانه یې ننه ایستلو، چې د ژوند کولو هیڅ گنجایش پکې نه وو.

هره شیبه یې د مرگ گوابن و، بالآخره یې له هغه خایه په وهلو ټکولو را وایستلو، بل ځای یې څلور نفره کټار ودرولو، پرتندې یې ټوپکونه را ونیول، وای که ژوند غواړې پنځوس زره ډالر را وباسه،

مال یو ډالر هم نشته، ډز شو پر ښي مټ یې وویشتلم ، بل ډز سره پـه حال کې نه یم راغلی....

لیکوال بل ځای لیکي: د جنگ جگړو داسې حالت دی لکـه پربنار چې یوه ټکه را پریوتې وي، هـر خـوا د راکټـو ډزې دي، مرمـی اوري، مړي او زخمیان له شمېره وتلي دي، د سره صلیب د شمېرې لـه مخې په یوه ورځ کې بې اته سوه تنه زخمیان یوازې دوی روغتون تـه رسولي، او نور چې څومره دي، هیڅ درک یې نه لګیږي.

ننګیال، وایی، په کابل کې چې دجنګ له وجې رسنی نشته نو خلک د شبنامو په څیر پردیوالونو له لیکنو، اشعارو او نورو خبرو سره د خپل زړه براس کاږي، چې خیني یې داسې لیکل شوي وو:

ای رهبران! ای رهزنان آه من و جان شما = ای خاینان فتنـه جـو خونم بداماں شما

من ملت وا مانده ام افتاده ام دربند تـان = خـونین بـود اعضـای من ازجنگ و پیمان شما

بل ځای لیکل شوي: کابل بربـاد کابـل = دشمن ناشاد کابـل = رهزنان خودفروخته = میکند بیداد کابل.

په کتاب کې را غونډې شوي عجايبې بيخـې ډيـرې دي، دلتـه يې د راوړلو ګنجايش نشته، پورتنی هغه یې فقط څو ټکي دي.

لنډه دا چې د میزان د شپږمې نیټې ور ها خوا د کابل د مرګ، درد او زخم کیسې ډېرې زیاتې او ډېرې دردوونکې دي، چې متاسـفانه او بیا هم متاسفانه د مجاهدینو د فتح او بریا په نتیجه کې رامنځ تـه شـوي، او دا فقـط د هغـو لنـډغرو، جګـړه مـارانو چـې ځانونـه یـې مجاهدین بلل، خو په حقیقت کـې نـوري بـلاوي وي؛ لـه لاسـه یـې دا هرڅه تباهي او د ریښتیني جهاد بدنامي وشوه.

همغـه خلـک چـې د کابـل او هیـواد د تبـاهي مـرتکبین شـول؛ ښنګه چې خدای تعالی مخکې هم شرمنده کړل او وروسته یې بیـا دا رسوایي هم په برخه شوه چې د امریکا پـه مشرۍ د نـاټو د یرغلګـرو کفري ټلوالي مقدمة الجیش هم له دوی جوړه شوه، دین او وطـن یـې د ډالر او نیمګړې واک په بدل کې وپلورل، د خپـل ولـس پرضـد یـې د امریکایي یرغلګرو تویک پر اوږه کیښود او پـوره شـل کالـه یـې دغـه ستر جنایت او خیانت ته ادامه ورکړه او لا ورکـې نښتي دي. سره لـه دې چې خانونه ورته مهذب، وطنپرست، مسلمانان ښکاري...!؟!

و الی الله المشتکی وبه المستعان

پای ....!



# له ژوند څخه مي زده کړل

له بوډا حکیم څخه یې وپوښتل ویل: له تېر شوي عمر څخـه دي څه زده کړل؟حیکم وویل:

- دا مي پکي زده کړل چي؛ د دنیا ژونـد د اللـه لـه لـوري یـو پـور دی. نو ژر وي که وروسته انسان به دا پور ادا کوي.

- دا مي پکي زده کړل چي؛ ژر وي که پس مظلـوم بـه حـتماً یـوه ورځ په خپل حق رسیږي.

- دا مي پکي زده کړل چي دنیا بـه حـتماً یـوه ورځ ختمـه او ړنګـه شي خو بیا هم موږ غفلت کوو.

- دا مي پکي زده کړل چي؛ د دنیا تـر ټولـو شـتمن کـس هغـه دی چي له سلامتیا، ټېکاو او هوسایي څخه برخمن وي.

- دا مـي پکـي زده کـړل څـوک چـي اوربشې کـري نـو د غنمـو حاصل نه شي اخیستلای.

- دا مي پکي زده کړل چي؛ عمر خلاصېږي خـو د انسـان هـیلي، غوښتني او کارونه نه خلاصېږي.

- دا مي پکي زده کړل چي؛ له خلکو سره سفر او د سـفر ملګرتیـا کول. د هغوی د مزاج، اخلاقو، ښه والي او بـدوالي د پېژنـدلو لپـاره ښـه معیار دی.

- دا مي پکي زده کړل چي؛ کوم کس چـي وایـي؛ داسي کـوم... او داسي به وکړم...

- هغه له عزم او جرأت څخه بې برخي دي، هغه هیڅ هم نـه شي کړای.

- او دا مي پکي زده کړل؛ په قبرونو کـي چـي څـومره کسـان دي هغوی ټولو داسي کارونه، هیلي او غوښتني لرلې چي په ترلاسـه کولـو یې نه دي بریالي شوي.



# د تلې د ۶ مې مخکې او وروسته

صلاح الدین صارم

ډېرې لوړې ژورې تېرې شوې، له روسانو سره د جهاد ثمره فساد او وحشت شوه او ډېره موده یې په برکې ونیوه، له دې وحشته د ولس وېستلو او بېرته د جهاد ثمرې ته ورګرځېدلو بیا ډېر وخت ونیو، چې ور ورسېدو او ځان مو دمې ته جوړاوه په دامنځ کې یو بل یرغل را او د انګل امریکا او ناټو هم دلته د خپل بخت ازمایلو ته سودا وه، دوه لسیزې بیا ووتې چې هغوی وتو ته مجبوره کېدل، نن هغوی هم دادي وزي او خبره د دوو انقلابونو د نتیجې د حصول په مورګو ولاړه ده.

دېښنو دغې لنډې محاسبې او لنډیز ۴۲ کاله په برکې نیولي، د دغې نږدې نیمې پېړۍ له بدبختیو، ناورینونو، دسیسو، جنګونو، ورانیو، اورونو، ویشونو، یرغلونو او تبعیضونو څخه د هیواد وېستلو او ولس په ساتلو کې چې دچا رغنده رول دی همدا د تلې د ۶ مې فاتح ملا او طالب دی، په دې ورځ یې د کمونیزم په خلاف د جهاد ثمره (اسلامي نظام) ترلاسه د خپلمنځي او تنظیمي جنګونو د وحشت دورې ته د پای ټکی کېښود او په انفرادي ډول یې له دوه لسیزو راهیسې په پرلپسې بې مثاله سرښندنو سره دادی بیا په دغه ورځ د امریکا او ناټو اشغال ته هم د پای ټکی ږدي.

دغې خاورې او هیواد ته تل همدا ملنګ او فقیر طبیعته طبقه ملایان او طالبان وفاداره پاته شوي، سختیو او کړاوونو ته تل دوی ځان ورکړی، په دې برخه کې د دوی قرباني، دهغو په پرتله چې په زده کړو یې د دې هیواد شتمني خاورې شوې په څو برابره زیاته بلکې لاد پرتلې هم نه ده، کله هم چې خاورې سرښندنه او قرباني غوښتې له ځینو پرته ټولو یې نورو هیوادو ته پنا وړې او همدا خړ سپېره طالبان او ولس ورته پاته شوي او په خپلو بې مثاله قربانیو یې خاورې ته تل خپلواکي اعاده کړې، خو بیا د دې په ځای چې تقدیر دې شي تل محروم پاته شوي او له حقوقو یې سترګې پټې شوې، که څوک نه خپه کیږي ښه مثال یې د افغانستان د هرې دورې اردو ده چې که په تاریخ یې ژور نظر واچول شي له ځینو پرته چې په خپلو سرښندنو یې تاریخ جوړ کړی، نور په مجموع کې د هر یرغل په خدمت کې پاته شوي او د دې په ځای چې له یرغلګرو هیواد وساتي د یرغلګرو په امر یې له خپلو خلکو سره ژوره دښمني کړې او دهغوی په مرګ او ورکه پسې یې را اخیستې ده.

د تلې د ۶ مې ورځ ته د دې د افغانستان په تاریخ کې په کمه سترګه نه کتل کیږي، دغه ورځ د افغانستان د دوو لویو انقلابونو له ماقبل او مابعد سره ډېر لوی تړاو لري په ماقبل کې یې د ډېرو لویو فتنو او د افغانستان د تجزیې مخه نیولې او په مابعد کې یې د دغې ورځې په تناظر کې د سیمې او نړۍ په سطحه له ډېرو لویو سیاسي تحولاتو او ننګونو سره په ډېر بصیرت، خورا بریالۍ دیپلوماسي او نظامي قوت پنجه نرمه کړې او لله الحمد چې دادی نن یې مونږ نغده نتیجه په خپلو سترګو وینو.

نن د امریکا ماته وړه خبره نه ده، چا یې د ماتې تصور هم نه شو کولای، خو طالبان پرته له دې چې د دوی ماته دې حتمي وبولي او کوم ظاهري ډاډ دې ووینې د هیواد اشغال یې په زړه نه شوای زغملای ځکه یې مقابلې ته راووتل همدا د هیوادنۍ مینې وروستی حد دی، د دې بې مثاله مېړانې او لاسته راوړنې قدر به اوس له ډېرو سره نه وي، خو یو وخت خامخا راتلونکی دی چې د دې اتلانو هره سرښندنه به د سرو زرو په کرښه لیکل کیږي او د راتلونکو ټولو نسلونو لپاره به ډېر ستر ویاړ وي.

هغوی چې بیا هم ځان ته ډېرې لوېې ډېرې ږدي د اسلام او اسلامي انقلاب ناړې وهي، دادی د دوی په شتون کې د کمونستي سرخیلانو، د کابل پلیګون او په هرات کې د حوت د ۲۴ مې د عاملینو د تلین لمانځلو خبرې کیږي او د دوی له اتلانو سره په یوه تله یې تلي، هغوی ته که چوکۍ، مقام او مادیات مهم نه وای ولې له طالبانو سره په دښمنۍ کې تر کمونستانو او غربیانو مخکې دي په داسې حال کې چې که چېرته دوی په خپلو دغو ناړو کې صادق وي نو له طالبانو سره د نظام په جوړولو کې شاید ډېر مشترکات ولري، خو ښکاره خبره ده چې دوی د مادیاتو تابع دي او د کفر ملاتړ یې هم د همدې مادي اغراضو لپاره کړی. نن د اسلامي نظام په راتلو کې لوی خنډ دوی دي چې غربیان یې د هماغو مادي احساناتو په زور په دې لاره کې استعمالوي او بیا هم د اسلام او مجاهد نسبتونه په ځان پورې موښي.

په افغانستان کې د اسلامي نظام قیام به ان شاءالله چې د تلې د شپېږمې د ماقبل او مابعد هیلو او ارمانونو په زړه پورې تتمه وي.

# د دوکتور نورالدین عتر ژوند او عملي خدمتونه..؟!

م .بلال

ستر محدث او فقیه استاد دکتور نورالدین عتر، هغه څوک چې معاصر تاریخ کې یې هر څوک له نوم او شخصیت سره اشنا دي، دغه حنفي مذهبه ستر عالم او محدث په علم، عمل او تقوی کې ډېر مشهور شو او د تاریخ په ارزښتناکه پاڼه کې یې غوره ځای ونیو .رحمه الله

نوموړی په کال ۱۳۵۶هـ ق کې چې ۱۹۳۷م .سره سمون خوري، د سوریې هیواد په لرغوني ښار حلب کې وزیږېد، پلار یې الحاج محمد عتر، چې د مشهور صوفي عالم محمد نجیب سراج الدین رحمه الله ځانګړی شاګرد و، خپل زوی د یني زده کړو ته وقف کړی و او په دې برخه کې یې ټولې اسناتیاوې ورته برابرې کړې وې.

لومړنۍ او ثانوي زده کړې یې په مشهوره مدرسه) الخسروية (کې وکړې او په ۱۹۵۴م کال کې په منځنیوعلومو کې په لومړۍ درجه د فراغت سند ترلاسه کړ، وروسته یې د مصر په ستره جامعه ( الازهر) کې د اصول الدین په برخه کې د لیسانس تر کچې زده کړې وکړې، په ۱۹۶۴م کې د تفسیر او حدیث په برخو کې د د کتوراه ستره علمي رتبه حاصله کړه او د ) طريقة الترمذي فی جامعه، والموازنة بينه وبين الصحيحين (په نامه د دکتوراه مقاله یې ولیکله، چې په خپله برخه کې بې ساري ګڼل کیږي.

تر فراغت وروسته یې د لږ وخت لپاره په سوریه کې د مدرس په توګه دنده ترسره کړه، وروسته له ۱۹۶۵م .څخه تر ۱۹۶۷ پورې په جامعه اسلامیه مدینه منوره کې د حدیثو په برخه کې استاد پاتې شو، بیا بېرته سوریې ته راغی او د دمشق د حلب په جامعاتو کې یې د حدیث او تفسیر مضامین تدریسول.

د دتدریس او علماوو روزنې ترڅنګ د لیکنې او تصنیف په برخه کې هم ښه وځلېد، تر پنځوسو زیات ګټورعلمي او تحلیلي کتابونه لري، چې تر ټولو مشهور یې) منهج النقد في علوم الحديث (دی، چې په اوسني وخت کې د مصطلح الحديث په برخه کې غوره کتاب بلل کیږي او په ډېرو جامعاتو کې تدریسیږي.

دغه راز یې) اعلام الانام (هم خورا ارزښتناک کتاب دی، چې په حدیث الاحکام کې بې ساری ګڼل کیږي او په ډېر جالب ډول یې د مجتهدینو او فقهاوو له لوري یو نص څخه د مختلفو احکامو د استخراج او استنباط څرنګوالی په ګوته کړی دی.

خدای بخښلی دکتور نورالدین عتر رحمه الله د زده کوونکو لپاره تر مهربانه پلار کم نه و، شپه ورځ یې په خورا خوښي سره د هغوی د علمي وړتیاوو د لوړولو لپاره هڅې کولې .که څه هم ستر عالم و او د علمي کړیو ترمنځ یې ښه نوم درلود؛ خو بیا یې هم د ځان شهرت او نوم نه خوښېده او هڅه یې کوله چې ګمنام پاتې شي.

د اسلامي نړۍ دغه ستر عالم او لیکوال او د زرګونو علماوو استاد، د تېرې اوونۍ د چهارشنبې په ورځ د روانې ستمبر میاشتې په ۲۳مه نیټه ۸۳کلونو په عمر له دې فاني نړۍ څخه د تل لپاره سترګې پټې کړې او تر شا یې ارزښتناکه علمي پانګه) زرګونه شاګردان او تر پنځوسو زیات ګټور علمي او تحلیلي کتابونه (امت ته پرېښودله .رحمه الله رحمة واسعة

# دمیزان د 6مې وړانـدې خـاطره!

بشیر ارمان

دمدرسې په مسجد کې مو په جماعت سره دماښـام لمونځ وکـړ، ناڅاپـه د مدرسـې انصارمهتمم پورته شو او دلنډې خطبې ویلو وروسته یې وویل: مبارک شـئ! نـن الحمد الله افغانستان کې د مجاهدینو قربانیو او دشهیدانو وینوپه رنـګ راوړو سره افغانسـتان ازاد شو او مجاهدین کامیاب شول،امید دی چـې هلتـه ژر یـو سـوچه اسـلامي حکومـت رامنځته شي!

هغه ویل ګورئ! شوروي او کمونست رژیم ته پـه شکسـت ورکولـو کـې دافغـاني علماوو او طالبانو ونډه اوکردارتربل هرچا ډیر اومهم وو، باید افغـان ملـت دهغـوی قربـانۍ هیرې نکړي!

د هغه دهمدومره وینا وروسته په مدرسه کې میشت افغاني طالبان دډیرې خوشـالۍ څخـه چـا خـبره پـه کـالیوکې نـه ځاییـدل، انصـارطالبان دافغانـانواومره خوشـال ښکاریدل،اوخپلو افغاني ملګروته یې د افغانستان دازادۍ او دمجاهدینو د دبرې مبـارکۍ ورکولې.

کله چې ماته اوس هغه منظر راپه زړه شي، نو حیران شم، چې مسلمانان دمجاهدینو په بري اودافغانستان ازادۍ ته څـومره زیـات خوشـال وو اوهـیلمن وو ورتـه،کا شـکې! جهادي رهبرانو دجهاد له اهدافوسره خیانت اوجفاوې نه وای کړې.

لړه موده نه وه تیره شوې چې ډیر په هغه خوشالۍ پښیمانشول ، زکه دپلازمینـې پـه ګډون دهیواد په زیاترو ولایتونو کې دقدرت په سر جنګونه پیل شو ل او په خاصه توګه د کابل ښاردننه دحزب وجمعیت او کلجم ملیشو ترمنځ جنګونو جوړ کابل په کنډوالو بـدل کړ.

بیا هم خلکو هم تمه درلوده او نهیلي نشول، چې دحزب وجمعیت نه علاوه نـورمجهز جهادي ګوندونه شته دي، هغوی به کله هم اوسنی بدمرغه حالت و نه زغمي؟ خامخـا بـه هغوی را پورته شي دګـیلم جـم ملیشـې او پـه قـدرت بانـدې دمینوګونـدونودجنایتونو او دهغوی دنه بښونکوخیانتونومخنیوی به وکړي، په مقابل کـې بـه ولـس راپورتـه کـړي،او جزب وجمعیت به دولس په مټ قـانع کـړي چـې د جګـړې لاس واخـلي او دټولـو جهـادي احزابو په خوښه او اتفاق سره به یو رښتینی اسلامي حکومت جوړشي.

متاسفانه! چې دوخت پـه تیریـدو سره د ولـس داهیلـې زنـدۍ او قتـل شـوې، نـور جهادي رهبران لاړل دغفلت په خوبونو ویده شول، اوځینو دحزب ، جمعیـت او ګـیلم جمانـو ترمنځ دجنګ له نندارې خوندونه اخیستل، یو داسې نر په هغوی کې پیدانشـو چـې هغـه په باتورۍ اومیړانه دقدرت لیوني هـبران پـه لار کړې وای، بلکې ځینو، ځینوخو د مسـعود او نظار شورچوپړته پناه وروړه،ورڅخه یې په سـوالونو اوزاریـو وزارتونـه غوښـتل شروع کــړل. او پـــه ډیـــرو واســـطواوپه اوونیـــو کوښښونه کول چې پـه څـه ډول داحمـد شـاه مسعود په ملاقات مشرف شي!

لنـډه داچـې هغـه (احمدشـاه مسـعود) خوهسـې هـم دجهادپـه ټولـه دوره کـې لـه شورویانو سره پروټوکولونه درلودل،دکومو په بدل کې چې شورویانو ورته پریمانه پیسـې ور کولې، او په بدل کې به یې ده دسـالنګونو لـه لارې دشوروي اتحاد اکمالاتي کاروانونـه پـه خوندي توګه پلازمینه کابل ته پرېښودل،اوس هغه پروټوکـولي قهرمـان دکابـل فـاتح ومنـل شو،اوهغه په کابل کې ترټولو زیات خـواکمن شو

هغه مهال چې روسانو دا درک کړه،چې دنجیـب کمونسـتي رژیـم د خپـل ژونـد وروسـتۍ سـلګۍ اخـلي، نـو ژریـې خپـل پخـوانۍ پروټوکـولي دوسـت (مسـعود) سره خفیه یوبل پروټوکول لاسلیک کړ، دکـوم پـه ترڅ کې چې هغه روسانوسره داسـلامي نظام دمخنیوي او له واک نـه دمخلصـو مجاهـدینو دلرې ساتلو، او پـه دولـت کـې کمونسـتانوته دغوړسهم ورکولو ژمنې وکړې، او روسانو هم کمونســـتانوته مســـعود سره دهمکـــارۍ او یوځـای کیـدو دنـده وسـپارله، هغـه وچـې

مسعود دپنجشیرڅخه په راوتلو دکمونستي جنرالانو په بدرگه او د هغوی پـه ټـانگونوکې سپور کابل ته ننوت.

له شک پرته د جهادي تنظیمونو لخوا دمسعود نه مهـار کـول او کابـل تـه خـلاصي تنې، له ټول ځواک سره دهغه راپرېښودل لویه تیروتنه او اشتباه وه، دکومې له املـه چـې ترننه افغان ملت دوسپنو نینې چیچي.

یقین دی که کابل ته دمسعود دننوتوسره ټولواحزابو کلک مخالفت په ډاگه کـړی و، او دکابل امنیت چارې یواځې دکابل ولایت جهادي قومندنانوته سپارل شـوي وای، څنگـه چې داروابناد مولوي جلال الدین حقاني صیب طرحه اوغوښتنه وه، هغه درسنیو لـه لارې په ډاگه اعلان وکړ،چې کابل ته دې ټول مجاهدین اوقومندانان له خپلسري ننوتوڅخه ډډه وکړي او یواځې دکابل ولایت اړونده جهادي قومندانانوته دې دکابل امنیت ساتلو اختیـار ورکړل شي، تردې چې هغه مسعودڅخه مخامخ په مخابروي خبروکې وغوښتل چـې کابـل ته دننوتو څخه ډډه وکړه، که څو هم مسعود ورسره ژمنه وکړه چې دی له پروان څخـه خپـل ځواکونه دکابل په لور نه لیږدوي، خوپه عمل کې یې لکـه د حکمتیـار کابـل تـه دننوتـو لپاره خپلو ځواکونوته قومنده ورکړه، تردې چې دواړه لوري دارگ ودانۍ پـه دروازو کـې دیوبل سره مخامخ شول، چون مسعود سره له وراندې نه گڼ شمیر دکمونسـت رژیـم بقایـا ځواکونه هم ملگري شوي وو او دوستم هم دوراندې نه نیم کابل نیولی و، نو دریواړو پـه گډه دحکمتیار ځواکونه د ارگ له دروازونه په شا وتمبول،په دې سره بیـا هـم جگـړه تـم نشوه، بلکې نور هم پکې شـدت راغـی،آن دکابـل نـه بهـر ولایتونوتـه یـې تـپ ورسـید، دمرکزي قوي دولت د نشتوالي په وجه ولایتونوکې ځایي زوراکي قومندانان مسلط شـول، هغوی دخپلو شخصي گټو وټونه ملي شتمنۍ قربان کړې، ځای په ځای دملوکـو الطـوایفۍ راج خور شو، ټولې لویې لارې ټوپکیـانو اوپاټکیـانو ونیـوې، هغـوی پـه زنـا ورځ هغـه وحشتونه او ظلمونه کول چې په لیکلو یې قلم شرم کوي

دپخواني جهاد اهداف په سیند لاهوشول، تردې چې خلک دې ویلوتـه مجبـور شـول چې وواییی: له دې وخت نه خو هغه دسرو کمونستانو وخت... وو

ددې ټولو بدمرغیو او ناخوالو په لیدو سره د هیواد اصیلو بچیـانو( طالبـانو) دامیـر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ بانـدې دکنـدهار میونـد ولسـوالۍ «سنگحصـار کلي» دیوپاټک دړنگولو څخه پاڅون پیـل کـړ، پـه لنـډ وخـت کـې یـې نـورې سـیمې هـم دپاټکیانو دشرڅخه خلاصه کړې، دبولدک ولسوالۍ دنیولـو وروسـته یـې کنـد هارولایـت دشروفساد له ځواکونوڅخه پاک کړ،دهغه وروسته شاوخوا نور ولایتونه یـې هـم تصـفیه کړل او په ډېره لنډه موده کې په خورا تیزۍ سره دکابل تردروازو پورې ورسیدل

کابـــل دروازوتـــه د رســـیدوڅخه وړانـــدې مسعود او ربـاني بـه طالبـان دامـن فربښتې بلـل،خو کلـه چـې هغـوی دکابـل پـه دروازو پړاوونه واچول، مسعودیانو وربانـدې ناڅاپـه بریدونه وکړل، او په نـاخبرۍ کـې یـې زیـات شمیر طالبان شهیدان، ټپیان، او اسیران کـړل، بالاخر د طالبانو او مسعودیانو ترمنځ دجنگونو اوږده لړۍ پیـل شـوه،طالبانو دجـلال ابـاد او ختیځو ولایتونو د فتح کولو وروسته دمیـزان د۱۳۷۵ ل کال په ٦مه نیټه د هیواد پلازمېنه د هغـه مسـعود او کمونسـتو جنرلانولـه واک څخه ازاده کړه، دکومو په وړاندې چې دجهاد وخت لویو، لویو تنظیمونـو وسـلې غورځـولې وې، دکوم مسـعود ځواکونـوچې دحکمتیـار ځواکونه دارگ له دروازې نـه پـه شـاتمبولي وو، طالبانو هغه مسـعود سره لـه حکمتیـاره ( چـې طالبـانو سره دگـډې مقـابلې لپـاره یـې دماهیپر ترون په ترځ کې صدر اعظم کړی و) دکابل نه وشاړه طالبان هغه ومسعودچې لـه ځان پرته یې بل څوک خپل سیال نه گاڼه، پـه یومنډه ترکولاب ورساوه، نـن یوځـل بیـا هغـه طالـب تـه چـې امریکـایي اشـغالگرېې د۱۹ کلنې جگړې وروسته دیته اړ کړل، چې ورسره دخپل شکسـت پـه پاڼـه لاسـلیک وکـړي او عمـلاً لـه افغانسـتانه دخپلـو ځواکونوپـه ویستلو پیل وکړي مظلوم افغانـان منتظـردي، او کابـل تـه یـې دفاتحانـه ورتـگ شـیبې شماري،دطالب لیـدلو تـه سـترگې پـه لار دي اوغوړپاسي چې کله به دطالب په لاس دیـوې بلې لوېې فتح غږ اوري؟ هـو! د یولـویې فـتح غږ...!

# ډیموکراسي که اسلامي نظام؟

قدرت الله شهاب

کله نه چې د سولې خبرې پیل شوي دي لـه هغـه ورځـې څخه موږ ګورو چې پر خواله رسنیو باندې دغه بحثونه خورا ډېر تـاوده شـوي دي چې بعضې وایـي اسـلامي نظـام پـه افغانستان کې غواړو بعضې وایي نـه د ډیموکراسۍ نظام دی وي او دا ځیني خو ښځې وايي چې په هېڅ صـورت مـوږ تـر ډیموکراسۍ نه تېرېږو دا زموږ ده سرو کرښو څخه ده.

دلته دا پوښتنه مطرح کیږي چې ډیموکراسي افغانانو تـه څه ګټې لري او اسلامي نظام څه ګټې لري؟

اول به راشو ډیموکراسۍ تـه، ډیموکراسي دا دی کلونـه وشول چې پر افغانانو امریکایي ډیموکراسي تپل شوې ده چې پـه دې ډیموکراسۍ کـې څـومره افغانـان در پـه دره شـول او څومره فساد ددې ډیموکراسۍ پـه چوکـاټ کـې پـه افغانسـتان کې ترسره شول.

ددې هېڅ مثال په نړۍ کې نه لیدل کیږي او لـه دې سـره سره له عسکر څخه ونیسې بیا تر ماموره له وزیر څخه ونیسې تر ارګ مشره ټول په اخلاقي فسـاد ککړ دي آن تـردې چې ده افغانستان په تاریخ کې اول ځل خلکو دا هـم ولیـدل چې پـه دننـه ارګ کـې د ډیموکراسۍ تـر چتـر لانـدې ده ښـځینه کارکوونکو عزتونه نه وو محفوظ لوړپوړي چـارواکي ټـول پـه اخلاقي فسـاد ککړ دي لکـه د فوټبـال فدراسـیون مشـر لکـه د کابل د جنایي جرمنو آمر او داسې ډېر مثالونه یې شته دي.

د پولیسو په لیکو کې په پراخه کچه بچه بـازۍ پـه شـان ناوړه او ده شرم ډک عمل آن تر دې حـده چې نړیـوالي رسنۍ پرې غبرېږي، داسې ډېر نور مثالونه شـته دغـه ټـول جرمونـه او فسـادونه د ډیموکراسۍ ځیږنـده دي چې دوئ ورتـه خپلـې لاسته راوړني وايي.

اوس که راسو اسلامي نظام ته نو اسلامي نظام خو ټولې نړۍ ته معلوم دی چـه هغـه د امـن او سـوکالۍ او ده خلګـو ده ښه ژوند کولو له پاره تر ټولو غوره نظام دی چې تـر ټولـو ښـه مثال یې ده طالبـانو ده تیـري واکمنۍ دوره ده چیرتـه چې پـه افغانستان کې یو سوچه اسلامي افغاني نظام موجـود وو چې په هغه نظام کې ده ټولو حقوق محفوظ وو که ښـځینه وو کـه نارینه ټول خوشحاله وو چا فساد نـه سـو کـولای چـا غـلا نـه سوه کولای چـا نامشـروع اړیکـي نـه سـوې سـاتلاى چـا بچـه بازۍ نه سوې کولای چا ظلم نه سوو کـولای چـا رشـوت نـه سـو اخیسـتلای چـا زنـا نـه سـوه کـولای چـا ده نشـئي توکـو کاروبار نه سو کولای چا شراب سرعام نـه سـوه چیښـلای پـه ټول هیواد کې مکمل امن وو . او داسې مثالې ده امن نظام وو چې تر اوسه یې نړۍ مثالونه ورکوي.

نـو اوس تاسـو فیصـله وکـړئ چـې پـه افغانستان کـې د افغانانو لپاره کوم یو نظام ګټې لري، کوم یو زیانونه البتـه یـوه خبـره بایـد وکـړم چـې کـوم خلـک ډیموکراسي غـواړي او د اسلامي نظـام مخـالف دي هغـه ټـول هغـه خلـګ دي چـې پـه اسلامي نظام کـې د هغـه خلکـو شخصـي ګټـي پـه خطـر کـي کیـږي لکـه مثـال پـه توګـه بیـا دوئ سـرعام شـرابونه نـه سـي چیښلای بیا دوئ خپلې نامشروع او ناروا جنسي اړیکـي نسـي ټینګولای بیا دوئ سرعام فساد نسي کـولای دوئ پـه ارګ کـې نشې او تماشې نه سي کولای غـلا نـه سـي کـولای نـو لـه دې وجې څخه دوئ د اسلامي نظام مخالف دي.

په دا سې حال کې چې ټول افغان اولس د اسـلامي نظـام او د سولي تـږی دی اللـه ج دې نـور افغانـانو تـه یـو ریښـتونې سوله او اسلامي نظام ور په برخه کړي.

د یو پیاوړي او خپلواک افغانستان په هیله

# ګلخونه



## غزل

د ازادۍ قېمت د وینو په سودا ورکوي
تر ګل نازک وجود په خوله کې د بلا ورکوي

سپینو ملکو یې تصمیم د جنازې نیولی
یو طالب پروت دی له ژَوَرو تېږو سا ورکوي

په خپل وطن کې یمه خپلو تر مرۍ نیولی
او در باري مُلا زما د مرګ فتوا ورکوي

بد بختي نده مبارک مو دې شي دا امتیاز
خدای وکافرو ته زموږ په لاس سزا ورکوي

ته خبر نه یې ښکلیه مخ کې دې د څه شي نور دی؟
خالق سپوږمۍ ته هم له لمر څخه رڼا ورکوي

د زړۀ پر دښت دې ښایي بیا د هجر شپه پیلېږي
سترګو کې سور شفق دې دغسې معنا ورکوي

راشد مشفق

# آزادي

ازادي چا په خیرات راکړې نه ده
ازادي مو دسرو وینو ثمره ده

ازادۍ ته مو هزار سرونه ځار کړل
ازادي مو نازولې میلمنه ده

دغازیانو د سرو وینو برکت دی
چې دکفر د غرور بېړۍ چپه ده

دناقوس منحوسه چیغه ده خاموشه
په هر لوري دتکبیر مسته نعره ده

ای عمره! سر را پورته کړه له قبره
ناټوګۍ د لست له سره را شپوه ده

دملت دسترو هیلو خوب رښتیا شو
پر هیواد یوه خوږه مسکا خوره ده

د نړۍ ددې پیاوړي ځواکمن ماتې
داسې ښکاري ته به وایې افسانه ده

آزادي چا ته دنوي ژوند آغاز دی
چا ته بیا یوه بدرنګه پدیده ده

د عاکف امارتي د قلم نوکه!
خوندور دې هر یو شعر او ټپه ده

## درجات رزق

مال: پایین ترین درجه رزق است.
صحت: بلند ترین درجه رزق است.
فرزندان صالح: بهترین نوع رزق است.
و رضایت الله: کامل ترین نوع رزق است.
یا رب کامل ترین رزق ات را میخواهم ....

## غزل

سپيني سپوږمۍ او ربوستورو به مې ځارکولو
ما به چې تړوله شپه مزل د درد په لار کولو

چې ته شهيد وې که ژوندی زه خبرنه وم ياره
ما هره ورځ ستا د راتللو انتظار کولو

بيلتون دې نه ؤ سم طوفان ؤ اوکه څه ؤ اشنا
زما دزړه په سرزمين يې چې رفتار کولو

کلي کې هر چابه دچا په وير سلگی وهلې
چا به د ورور ارمان کا ؤ چابه د پلار کولو

ښار د ناترسوکې مې ژوند ؤ چا درد نه پيژندو
نو به مې چاته دخپل مات زړگي اظهار کولو

څوک شهيدان شول چاپه نيمه لارکې پريښودمه
زما يارانو پسې خدايه چا ازار کولو

څه غم زده زندگي کړله بدرالدين ځلاند به
ته ورته گوره تل په غم به يې روزگار کولو

بدرالدين ځلاند

## عیب

صائب

اگر به ترک کلاه دیگران شوند ازاد
کلاه مردم ازاده ترک سر باشد
دعای مردم افتاده رد نمی گردد
حذر ز جلنید زدستی که زیر سر باشد
ز عیب خویش، هنر نیست چشم پوشیدن
که پرده پوشی عیب کسان، هنر باشد

## غزل

د ازادۍ قيمت د وينو په سودا ورکوي
تر گل نازک وجود په خوله کې د بلا ورکوي

سپينو ملکو يې تصميم د جنازې نيولی
يو طالب پروت دی له ژوَرو ټپو سا ورکوي

په خپل وطن کې يمه خپلو تر مرۍ نيولی
او در باري مُلا زما د مرگ فتوا ورکوي

بد بختي نده مبارک مو دې شي دا امتياز
خدای وکافرو ته زموږ په لاس سزا ورکوي

ته خبر نه يې ښکليه مخ کې دې د څه شي نور دی؟
خالق سپوږمۍ ته هم له لمر څخه رڼا ورکوي

د زړۀ پر دښت دې ښايي بيا د هجر شپه پيلېږي
سترگو کې سور شفق دې دغسې معنا ورکوي

پيرمحمد کاروان

موسم د منې دی خو ته په کې سپرلی راوله
سولې زين کړی د گل گل مينې نيلی راوله

زمونږ سندرې ساندې چيغې چيغې د وير
په کې جوهر د خوشحالۍ په سُر و لی راوله

نه چې پردی شي په پردي وطن کې ورک شي رانه
د مور وطن واوره ناره وايي لالې راوله

د لمر قاصد ويل چې شپې مو سپينې سپينې راځي
سپوږمۍ د امن ته د ستورو هرکلي راوله

په سرو سکروټو کې رواني اوبه وينم په خوب
د گلابونو د نرگسو بوزغَلی راوله

سېل د باگرام د بلبلانو دې کابل ته راځي
خپل آباسين ته تږی تږی کابلی راوله

پر پانه پانه يې کاروان ليکي افغانه غزل
و خړو دښتو ته د سره غاټول تولی راوله



# یو څو اندېښنې او ځواب یې!

عابد

دځینو خلکو په ځینو څرګندونو سړی ډېر حیران شي چې څرنګه هغه څوک چې په ختېه دې افغان وي او بیا دې هم د داسې څه اظهار وکړي، چې د ده دخاورې له اصلیت سره دې په ټکر کې وي، هغه خاوره چې اسلام یې داصلیت او معرفت نښه ده. خو دریغه! چې داسلامي امارت دواکمنۍ په سقوط او دغربي کفارو په یرغل سره نولس کلن اشغال داسې څه ته هم زمینه مساعده کړه چې اوس ځینې خلک داسلامي نظام د راتلو له آواز سره په وېره کې شي او بېلابېلې اندېښنې ورته رامخته کیږي.

مخکې له دې چې په دغو اندېښنو له دوی سره وغږیږو د دغو اندېښنو درامنځته کېدو له اسبابو به هم مخ نه اړوو. لومړی د دغو اندېښنو خلکو سلنه که په ولس کې وکتل شي دنشت برابر ده او دافغانستان دمسلمان مجاهد ولس په منځ کې د دوی کچه له شک پرته چې هیڅ ده، خوداچې د دې خلکو لاسرسی تر تبلیغاتي وسایلو دی او تر ډېره په دستوري ډول دځینو مغرضو کړیو له لوري هم د دغه ډول اندېښنو راپورته کولو ته کار کیږي، نو ځکه باید تر قلم لاندې راشي او خلکو ته حقیقت څرګند شي، هڅه به وکړو د دوی د داډول اندېښنو په دفع کې خپل معلومات له دوی سره شریک کړو.

څنګه اسلامي نظام؟ هغوی چې داسلام له دین څخه ناخبر دي فکر کوي چې داسلام قواعد او اساسات هم دیوچا په لاس کې کیدلی شي، وخت په وخت به تغیر مومي او دخلکو له غوښتنو سره سم به دهغوی په مزاج برابریږي، یا دځینو خلکو فکر او عمل اسلام بولي او وایي لکه دچا... اسلامي نظام، په ځای د دې چې خلک په اسلام وپېژني اسلام په خلکو پېژني، په داسې حال کې چې داسلام اساسات ډېر واضح دي او هیڅوک به داسې پیدا نه شي چې خپل حق پکې خوندي ونه بولي، طالبان هیڅکله نه شي کولای داسلام اساسات د ځان په نفع برابر کړي، هرڅوک کولای شي داسلام په اصولو داعتماد له مخې ډېر زړور وي او له هیڅ څه څخه وېره ونه لري.

په تېرو شلو کلونو کې چې د یرغل په سیوري کې د دیموکراسۍ له لورینې کوم نظامونه په افغانستان تپل شوي ایا داسې کوم څه به هم ولري چې له راتلونکي اسلامي نظامه یې پرې غوره وبولو، دتېرو شلو کلونو په موده کې دنظام په برخه کې مونږ کومې ناخوالې ونه لیدې؟ تر دې چې دهمدغو نړدې څلوېښتو هیوادونو د عسکرو په شتون کې بیا هم ونه توانیدل چې لا اقل د دوی راوړې دغې ارمغان دیمکراسۍ اساسات خو پلي کړي، بلکې دقدرت دوېش او جوړ جاړي په غرض څو ځله په خپله د نظام اداري بڼه ورته بدله شوه او داسې یو څه به رامنځته شول چې په قانونیت او مشروعیت به یې دنړۍ په هیڅ دیمکرات هیواد کې بېلګه په ګوتو نه شي.

دښځو حقوق: دښځو حقوق په څه معنا؟ که هرڅومره وویل شي چې ښځو ته داسلام مبین دین کوم حقوق ورکړي هیڅوک تر هغو پورته حق نه شي ورکولای، ولې بیا هم ځیني لږکي دا غږ پورته کوي چې که په افغانستان کې اسلامي نظام راشي، نو دښځو حقوق! به څنګه شي او داسې ښیي چې رښتیا هم دوی د ښځو دحقوقو رښتوني مدافعین دي. لومړی خو به په مذاکراتو کې اصولو ته کتل کیږي چې په اصولو کې موافقت راشي بیا فروع مسائل دهغو په رڼا کې خامخا حل کېدلای شي، داسلام په اصولو هیڅکله معامله شونې نه ده، پاته

فرعي مسائل د دې نه وي چې عليا مصالح په خطر کې پرې واچول شي، داهم ده چې دښځو له حقوقو بايدهغه څه مقصود نه شي چې دښځو د حقوقو غږ پورته کوونکي مدعيان يې دغرب عرياني او دخپلو غريزو داشباع لپاره کاروي، په داسې حال کې چې زمونږ دين، کلتور، عنعنات اواجتماعي جوړښت يې هيڅکله هم اجازه نه ورکوي او دا واقعيت به تر بل هرچا پخپلو ښځوته د اشغال په تېره شل کلنه دوره کې ښه معلوم شوی وي، په تېرو شلو کلونو کې چې د ديمکراسۍ په سيوري کې ښځې د کوم تيري ښکار شوې دي بل څوک به دومره نه وي او هغه ناخوالې چې دوی په دغه موده کې وليدې دافغانستان په تاريخ کې يې بېلګې نه شي موندل کېدای. دغه راز دي دښځو حقوق يواځې تر ښارونو هم نه محدودېږي راشئ په کليو او اطرافو کې چې ښځې د کوم ظلم ښکار دي د هغوی دې هم غم وخوړل شي او ښکاره ده چې دهغوی غم له اسلامي نظام پرته بل هيڅ بشري نهاد نه شي خوړلی.

**د ښځو کار او تعليم :** دښځو کار او تعليم هم له همدې قبيلې څخه دي، اسلامي امارت بار بار دا خبره واضح کړې چې د خپلو خپلو شرايطو او امکاناتو په برابرېدو سره به په دې اړه اقدام کوي، که يو وارې ځان مسلمان بولو نو بيا ولې له قرآني هداياتو څخه وېره ولرو او د ښځو دکار او تعليم په اړه داسلام لارښوونې زيانمنې وګڼو، زمونږ جګړه هم دشخصي مفادو، واک او مقام ترلاسه کولو لپاره نه ده، بلکې انساني بشريت ته دهمدې ناجي دين اسلام د احکامو د پلي کولو لپاره ده، دښځو کار که دنړۍ او په ځانګړې ډول په افغانستان کې وارزول شي، دغه اصطلاح د ځانګړو موخو لپاره کارول کيږي او يو داسې څه نه دي چې سړی په دې مطمئين شي چې په دې شعار کې رښتياهم د ښځو دحقوقو غم خوړل شوی، خو که په دې اړه اسلام ته رجوع وشي نو هلته دښځې حقوق ډېر خوندي دي، دمال دمالکيت، تجارت، او دژوند په ډېرو نورو برخو کې داسلام په خپلو اصولو کې له ډېر څه برخمنه ده، خو مونږ مخکې له دې چې دښځې دغه حقوق په يوه اسلامي نظام کې ووينو اويايې ځان ته معلوم کړو، له نورو سره دهغوی داغراضو شعارونه بدرګه کوو.

**د بيان آزادي :** دبيان ازادي که داسې وي لکه داشغال په داتېرو شلو کلونو کې خو سمه ده مونږ پرې راضي يو اوبايد چې همداسې دحاکم نظام طرف نيول دبيان ازادي وي، مونږ وليدل چې دبيان آزادي څه ډول ازادي وه او مطبوعاتو کوم طرف نيولی و؟ چې نه تنها خپل دغه عمل يې خپله خطا نه ګڼله بلکې په ډېر تېنګار يې توجيه کاوه هم او که نه په راتلونکي نظام کې بل ډول ازادي غواړي او له اوسه ورته کمپاينونه کيږي، نو دا به بيا ډېره بې انصافي وي.

دلته دبيان ازادي له عقيدې سره تړاو نه لري، داهيواد او داخلک ديوې عقيدې خلک او کلک مسلمان ملت دی، البته که دذميانو او لږکيو حقوق هم دبيان په ازادي کې شامل وو لکه څنګه يې چې ديمکراسي ښوونه کوي نو هغه خو داسلامي نظام په راتلوسره پخپله خوندي کيږي، بلکې د هغوی دحقوقو دخونديتوب او دلته د نورو مذهبونو دپيروانو سره دښه چلند ښه بېلګه دافغانستان اسلامي امارت وړاندې کړې اوبيا يې هم وړاندې کولای شي چې د حاکميت په دوره کې يې په دې اړه هيڅ کومه ستونزه رامنځته نه شوه.

## د پيغمبر ﷺ په دعاګانو کې جامع مانع دعا

اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ مَا سَأَلَكَ مِنْهُ نَبِيُّكَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا اسْتَعَاذَ مِنْهُ نَبِيُّكَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، وَأَنْتَ الْمُسْتَعَانُ ، وَعَلَيْكَ الْبَلَاغُ ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ.(ترمذي دويم ټوک ۱۹۲ مخ )

اې الله زه له تانه هغه خير غواړم کوم چې نبي عليه السلام له تانه غوښتی. او زه له تانه پناه غواړم له هغه شر څخه چې ستا نبي عليه السلام ترې پناه غوښتې ، هم ته هغه ذات يې چې مدد درنه غوښتل کيږي او هم ته دعا قبلونکی يې ، نشته له ګناهونو د بچکيدو طاقت مګر د الله په حفاظت سره او نشته د نيکۍ قوت مګر د الله په مدد سره .



مفاوضات سلام افغانستان
د افغانستان د سولې مذاکرات
مذاکرات صلح افغانستان
Afghanistan Peace Negotiations

جمشید هلمندی

# داسلامي امارت دمذاکراتي ټیم قوت او هیبت!

د بین الافغاني مذاکراتو یو تر ټولو لوی او مثبت اقدام د اسلامي امارت په مذاکراتي ټېم کې د نویو مشرانو ټاکنه ده، چې پر بین الافغاني مذاکراتو به خورا مثبت اغیز ولري ، د عالیقدر امیرالمؤمنین دحکم په اساس په ۵/۹/۲۰۲۰ تاریخ باندې د اسلامي امارت مذاکراتي ټیم اعلان شو.

په یاد مذاکراتي ټیم کې ۲۱ تنه غړي شتون لري او محترم شیخ مولوي عبدالحکیم صاحب د مذاکراتي ټیم رئیس وټاکل شو.

د شیخ عبدالحکیم صاحب ټاکنه ولي رامنځته شوه !

شیخ صاحب عبدالحکیم چې د ملا محمد عمر مجاهد تر ټولو نیږدې او د اعتماد وړ کس و، شیخ مولوي عبدالحکیم صاحب د کندهار ولایت د میوند ولسوالۍ د بند تېمور اوسیدونکی دی .

شیخ صاحب عبدالحکیم د اسلامي امارت د علمي سیاسي او تجربه ناکو شخصیتونو له جملې څخه یو برجسته عالم او بانفوذه کس دی.

هغه د اسلامي امارت د عالي محاکمو د رئیس او په عین حال کې د دورة الحدیث شیخ پاتې شوی او په مجاهدینو ډېر مسلط شخص بلل کیږي.

چې په زرهاوو شاګردان یې اوس هم د سنګر په غېږه کې ژوند تېره وي.

شیخ صاحب د نورو علومو ترڅنګ په فقهي مسایلو کې هم پراخ لاس او ژوره مطالعه لري، او ورسره په څنګ کې د اسلامي امارت په مهمو او لویو پریکړو کې مهم رول لوبوي.

شیخ صاحب یو بانفوذه دیني او فقهي شخصیت دی نو له همدې وجې چې بین الافغاني مذاکراتو کې د مسئلې حل تر ډېره په دیني مسائلو پورې تړلی دی باید و وایم چې شیخ صاحب د مذاکراتي ټیم د رئیس په توګه ټاکل د امیرالمؤمنین یوه خاصه ځیرکتیا او ښه اقدام دی.

باید و وایم چې شیخ صاحب د اسلامي او شرعي نظام په هکله خورا عمیقه مطالعه هم لري.

د شیخ صاحب عبدالحکیم د مذاکراتي ټېم رئیس ټاکل دا جوته کوي چې اسلامي امارت بین الافغاني مذاکرتو ته ژمن دی او غواړې له همدې لارې د افغانستان معضله حل کړي تر څو یوه سوچه اسلامي نظام ته لاره هواره شي،د نوموړي په څنګ ښاغلی شیرمحمد عباس ستانکزی صاحب چې له امریکایانو سره یې مذاکراتي پړاوو په ښه مهارت او جرئت رهبري کړ اوس هم دشیخ صاحب دمرستیال په توګه دنده لري نو ځکه باید و وایم چې مذاکراتي ټیم له هرې نګاه الحمد لله ښه فعاله او وړ کسان لري.

د کابل اداره (!) وروسته له هغه چې څو ورځې وړاندې مذاکراتي افتتاحیه غونډې ته مایک پمپیو و ویل موږ خپل قانون او دیموکراسي په چا نه تحمیله و، د هرچا خپله خوښه!

دې خبرې هغه کسان چې د کابل ادارې پـه نماینـده کـې راغلي ول (!) سخت غمجن او هک حیران کړل!

شاید یادو کسانو د پمپیو له وینا څخه سم برداشت نه وي اخیستی!

د پمپیو دا وینا چې موږ خپل نظام او دیموکراسي پـه چا نه تحمیله و د ارګ او سپیدار مانۍ چارواکو تـه څرګنـده پیغـام ورکوي هغه دا چې افغانان باید خپل نظام په خپله خوښـه جـوړ کړي، او دا څرګنده ده چې افغانان د اسلام له مبـارک دیـن سره دومره مینه لري چې موږ یې مثال نشو پیش کولای !

د اسلامي نظام قائمول په ګران هېواد کې د امـن او ثبـات د ټینګښت او د سرتاسر سولې راوستولو او د اسلامي شریعت محکمولو ته ژمن او لیواله دی .

په مذاکراتي ټیم کې د شیخ عبـدالحکیم صـاحب او نـورو نویو مشرانو ټاکنه ډیـر پـر ځـای او مثبـت اقـدام دی او پـر بـین الافغاني مذاکراتو به خپل اثـر وښـندي .پـه نویـو ټـاکنو سره د اسلامي امارت مذاکراتي ټیم نور هم له علمي او سـیاسي اړخـه له هرې نګاه پوره، قوي او د باور وړ ټیم جوړ شو.

مذاکراتو ته له قوي دریځه را څرګندیـدلو او پـه مـذاکراتي ټـیم کـې نویـو ټـاکنو دا روښـانه کـړل چـې اسـلامي‌امارت پـه مذاکراتو پورا باور لري او بین الافغاني مذاکراتو ته حاضر دی.

د اسـلامي امـارت مـذاکراتي ټـیم د افغـان او د مجاهـد شـموله ولـس او افغـاني قشرونو څخـه جـوړ دی،چـې یـوه یـې رهبري یو یې هدف او یـو یـې مسـیر دی پـه یـاد ټـیم کـې ټـول افغانان خپل ځانونه لیدلای شيُ،..

بله ځانګړنه د اسلامي امارت د مذاکراتي ټیم داده چـې د اسلامي او افغاني فرهنګ، کلتور ملـي او اسـلامي ارزښـتونو پـه پام نیولـو عنعنـاتو پـه رڼـا کـې د یـو متحـد افغانسـتان پـه نمایندګی خپل مذاکرات پر مخ بیایې.

و ماذالک علی الله بعزیز






# د مشرانو وفا او اخلاص

دا هغـه دوه اتـلان دي چـې د اسـدالله خالـد فرانسـوی مشاوره یې ووژل او بیا زندانیان سول،

فرانس یې د خلاصون مخالفت وکـړی او د کابـل ادارې سور خط کش کړی چې دغه د میلمنو قاتلین په هـیڅ صـورت نه ایله کوو، شپې او ورځې تېرېږي چې د بین الافغاني افتتاحي غونډې مراسـم راورسـېدل او سبا ورځـې تـه د ۳۵ هیوادونـو سفیران او نور زیات میلمانه راغوښتل سوي دي، پمپیـو، میلـر او خلیلزاد غونـډې تـه راروان دي، ترتیبـات ټـول بشـپړ سـول، طالبانو خلیلزاد ته وویل چې هغه زموږ دوه ملګري ولې نـه دي ایله سوي؟ خلیلزاد ورته ویل فرانس یې د خلاصـون مخالفـت کوي، طالبانو وویل چې تر څو هغه دوه بنـدیان خـلاص نسي-تر هغو په یوه غونډه کې هم شرکـت نـه کـوو ځکـه زمـوږ سره وعـده سـوې وه، امریکایـانو ډېـر زور وکـړی چـې سـفیران او میلمانه مو راغوښتي دي او د هغوی مخته مو مه شرموئ خو د طالب یوه خبره وه چې تـر څـو ایلـه سـوي نـه وي ولاکـه سره کښېنستو، خبره ټرمپ ته ورسېدل او ټرمپ د فـرانس ولسمشر-ته وویل چې د داسې بې پروا او زورور دښـمن سره مـخ سـوي یو چې په ټول ژوند مـو فکـر هـم نـه وو کـړی اخیـر د فـرانس ولسمشر ورسره ومنل، بندیان خلاص سول او چې کلـه میـدان وردګـو کـې دوه تنـه بنـدي اتـلان خپلـو مجاهـدینو اتلانـو تـه وسپارل سول نو امارت اعلان وکړی چې موږ غونډې تـه بشـپړ تیاری نېولی دی او د هغه وروسـته امریکـا او نـورو هیوادونـو د غونډې د پیل اعلان وکړی.



# بین الافغاني مذاکرات او د ولس هیلې

لیکوال :مصلح افغان

د نړۍ په ټولو قوانینو او نظامونو کې د هېوادونو خپلواکي د یو اصل په توګه منل شوې .او دا د هر هېواد او ملت مسلم حق ګڼل شوی .په نړۍ کې ډېرو اشغال شویو هېوادونو د خپل هېواد د خپلواکۍ د ترلاسه کولو لپاره ډېرې سترې قربانۍ ورکړې .او دې جګړې ته یې د یوې مقدسې جګړې په سترګه کتلي، او په دې لار کې وژل شوي سرتېري یې په خپل تاریخ کې د اتلانو په نوم ثبت کړي، د اشغالګرو ترڅنګ ولاړ خلک یې غداران او خائنان بللي .

هیټلر په خپل کتاب کې وایي : په انسانانو کې تر ټولو بیغرته خلک هغه وه چې له مونږ سره یې د خپل هېواد په اشغال کې مرسته کوله . نړیوال که څه هم د هېوادونو خپلواکي یو اصل او د هغوی مسلم حق بولي خو بیا هم د نړۍ ځینو کفري استکباري قوتونو د تاریخ په اوږدو کې دغه اصل له پوښنو لاندې کړی له اسلام او اسلامي امت سره د ژورې دښمنۍ په بنسټ یې په ډېرو اسلامي هېوادونو یرغل کړی او د هغوی خپلواکي یې سلب کړې .

چې د دې هېوادونو له جملې څخه یو زمونږ ګران هېواد افغانستان هم ده چې د تاریخ په مختلفو پړاونو کې پرې د کافرانو له لوري یرغل شوی .د سختو وحشتونو او بمباردونو په زور یې د یو څه وخت لپاره خپل لاسپوڅي په دې غیور ملت تپلي .چې هر ځل د افغانانو له لوري له سخت شکست او نامۍ سره مخ شوي او په تېښتو سترګو یې له دې هېواد څخه پښې سپکې کړې .

کفري ملتونه د خپلواکۍ اخستلو جګړې ته د یوې مقدسې جګړې په سترګه ګوري . خو د اسلام په قاموس کې بیا دغې جګړې ته د جهاد نوم ورکړی شوی او د یو فرضي عبادت په نظر ورته کتل شوي، د شریعت په ډېرو صریحو نصوصو کې د جهاد ، مجاهد او شهید ډېر فضائل بیان شوي .

له همدې امله اسلامي امتونو ته د خپلو هېوادونو خپلواکي ډېر اهمیت لري .او په دې لاره کې د هېڅ ډول قربانۍ څخه دریغ نه کوي .په ځانګړې ډول بیا افغانان په دغه لار کې د میړانې او شهامت څخه ډک تاریخ لري .د تاریخ په اوږدو کې یې په تش لاس له داسې سترو قوتونو سره ډغرې وهلي چې غټ غټ هېوادونه یې له مقابلې نه عاجز وه .چې د اسلامي امارت تر قیادت لاندې د امریکا په مشرۍ د ناټو له مجهزو او په پرمختللو وسلو سمبالو ځواکونو سره تېره نولس کلنه مبارزه یې ژوندی مثال ده.

اسلامي امارت د علماء او شیخو په قیادت کې د دې ملت له منځه راپورته شوې خوځښت دی .د نړۍ په کچه یواځنی اسلامي حرکت ده چې په خپلو ټولو کړونو کې اسلامي ارزښتونو ته ژمن دی . خپلې ټولې فیصلې د اسلامي ارشاداتو په رڼا کې ترسره کوي .

اسلام له کافرانو سره د صلحې دروازه هم خلاصه پرېښې .که یو وخت کافران له مسلمانانو سره د سولې غوښتنه وکړي مسلمانان هم د خپلو اسلامي اصولو په نظر کې نیولو سره له هغوی سره سوله کولی شي .چې په اسلامي تاریخ کې یې زیات مثالونه شتون لري

له همدې امله اسلامي امارت په دوه زره یو ) ۲۰۰۱ ( میلادي کال کې هم د امریکایانو له یرغل څخه مخکې هغوی ته د مذاکراتو وړاندیز کړی وه چې هغه وخت د بوش له خوا په ډېر غرور سره رد شو .د جنګ اعلان یې وکړ او دغه جنګ یې صلیبي جګړه وبلله .د تېرو نولسو کلنو په جریان کې هم اسلامي امارت د سولې دروازه خلاصه پرېښې وه. چې کله به د امریکایانو او که به یې د ګوډاګیانو لخوا وتړل شوه .

بالاخره د نولسو کلنو په تېریدلو امریکایان دې پایلې ته ورسېدل چې د غه جګړه نه شي ګټلی .او په خپله خوله یې د خپلې

ماتې اقرار وکړ او دا یې هم په صراحت سره وویل چې افغانستان د امپراطوریو هدیره ده .د افغانستان مسئله د جنگ له لارې نه حل کېږي دا مسئله باید د سولې له لارې حل شي .هماغه وه چې د خپلو گوډاکیانو د توقع خلاف یې د اسلامي امارت سیاسي دفتر ته مراجعه وکړه . مذاکرات رسما پیل شول چې تقریبا یو کال یې دوام وکړ . چې په نتیجه کې افغانان د اسلامي امارت په قیادت کې له امریکایانو سره د دغو پیچلو مذاکراتو له جریان نه سرلوړي او بریالي راووتل .

په تېره نولس کلنه مبارزه او بیا له امریکایانو سره د بریالیو مذاکراتو په ترسره کولو افغانانو نړۍ ته وښودله چې مونږ هم د جګړې خلک یو او هم د جرگو ،مرکو، او مذاکراتو .مونږ هر وخت جگړې ته مجبور شوي یو .جګړه په مونږ تپل شوې .جگړه زمونږ انتخاب نه بلکې مجبوریت ده . کنه مونږ د دې وړتیا لرو چې د نړۍ او سیمې هېوادونو سره د متقابل احترام په اصولو برابر په سولیزه فضاء کې ژوند وکړو .

له امریکایانو سره د مذاکراتو له پیلېدو سره سم د افغانانو په زړونو کې د تېرځوېښت کلن جنگ د پای ته رسېدو او په تېره بیا د امریکایي اشغال په موده کې د هرې ورځې د بمبارونو، شپنیو چاپو او وحشتونو د پای ته رسېدلو هیلې راټوکېدلې . د هېواد په مختلفو سیمو مسجدونو، مدرسو او کورونو کې د مذاکراتو د کامیابېدو لپاره ختمونه او د عاگانې وشوې . د اولس د دغو ختمونو ، د عاگانو او د اسلامي امارت د سیاسي د فتر د مشرانو د سیاسي بصیرت صبر، زغم او د الله تعالی د خصوصي فضل او کرم په نتیجه کې دغه مذاکرات له یولسو پړاوونو وروسته بریالي شول له اشغالگرو سره د هېواد د اشغال د پای ته رسېدو، د خپلواکۍ اخستلو تړون لاسلیک شو .

په دې تړون کې که څه هم د اسلامي امارت له لوري په نورو هېوادونو کې د نه مداخلې هرکړه شوې .چې ځینې خلک ورته اندېښمن دي .خو زما په گومان طالب په خپلو قربانیو او سیاسي بصیرت ټول اسلامي امت ته د دې خبرې درس ورکړ . چې که چېرې اسلامي امت د دوی په لاره لاړ شي الله تعالی به دوی ته هم په خپلو دښمنانو د غلبې توفیق ورکړي او د عزت او خپلواکۍ ژوند به یې په نصیب شي .

د مذاکراتو د دغه پړاو کامیابېدل د نړیوالو او افغانانو له تصور نه لرې خبره وه . چې په کامیابیدو سره یې د افغانانو په وجود کې د یو نوي ژوند ساه وچلېده .د امریکایانو او د گوډاگیانو له لوري یې په ړندو بمباریو او وحشتناکو چاپو کې د پام وړ کموالی راغی .

د اسلامي امارت ویاندویانو له پیله په دې خبره اسرار کاوه چې د افغانستان مسئله دوه بعده لري چې یو یې خارجي بعد ده او یو یې داخلي .لمړی باید خارجي بعد سره مذاکرات تر سره شي چې هماغسې وشول .

له امریکایانو د سره د موافقې له لاسلیک نه وروسته د کابل اداري تبلیغاتي دستگا داسې تبلیغات پیل کړل چې گواکې طالبانو له کافرانو سره سوله وکړه او له خپلو افغانانو سره یې جگړه جاري ساتلې .تر څو د طالب په وړاندې عامه ذهنیت بدل کړي .او د دوی روانه مبارزه له سوال لاندې راولي .

خو دوی له ځان سره دافکر ونه کړ چې مونږ دا نولس کاله له همدې کافرانو سره ملگرتیا وکړه .د هغوی د خوشحالولو لپاره مو خپل هېوادوال ووژل، په کورنو مو ورته چاپې ووهلې ،

مسجدونه ، مدرسې ، کلینیکونه او ودونه مو ورته بمبار کړل . حال دا چې دغه امریکایي کافران له مونږ سره نه په دین کې شریک وه .نه په هېواد کې او نه په قوم ، ژبه او کلتور کې .او چې له چا سره جنگېدو هغوی راسره په دې هرڅه کې شریک وه . اکثره یې دیني عالمان او د قران حافظان وه . مونږ ته د دغې نولس کلنې جگړې جواز کوم عقل کوم قانون او کوم دین راکړی وه؟

دا خبره ټولو ته معلومه ده چې د اسلامي امارت روان جهاد د امریکایي اشغالگرو په ضد پیل شوی .امریکایانو په داسې وخت کې په افغانستان یرغل وکړ چې دلته یو سوچه اسلامي نظام حاکم وه . هغه وخت نه د کابل اداري شتون درلوده او نه هم د دې اداري عسکرو .بلکې دغه اداره اشغالگرو امریکایانو د خپلو اهدافو د ترلاسه کولو لپاره جوړه کړه . د امنیتي ځواکونو په نوم یې د ولس بچیان د خپل امنیت د ساتلو لپاره ورزل .تر څو یې د خپلو افغانانو ورونو په وړاندې وجنگوي .او دخپلو ځانونو لپاره ورځخه د سپر کار واخلي .

د دوی له وتلو وروسته یې د همدې کفري نظام د ساتنې لپاره وکاروي . دغه ادراه او مفسد مدیران په تېرو نولسو کلنو کې د اشغالگرو له لورې د تیارو او ټانگونو په زور په دې اولس تپل شوي .

د اشغالګرو له وتلو وروسته باید دوی دا فکر ونه کړي چې مونږ به له دې وروسته هم د دې اولس پـه سر حـاکمان یـو .او خپـل ظلـم ، وحشت او فساد ته به دوام ورکوو،طالب دې توپک په څمکه کېږدي او زمونږ تر حاکمیت لاندې دې په همدې نظام کې راګډ شي .دوی بایـد دا فکر له مغزو وباسي .حقایق درک کړي .په خپلو کړنو پښېـمانه شي . له ملت څخه بښنه وغواړي . او په هیواد کې د اسلامي نظام په وړاندې خنډ نه شي .

اسلامي امارت وخت په وخـت پـه خپلـو اعلامیـو کـې دا خـبره کړې چې د اسلامي امارت په قیادت کـې د افغـان ولـس روان جهـاد د دوه سپېڅلو هدفونو لپاره پیل شوی .چې یو یې د اشغال خاتمـه او بـل یې د اسلامي نظام حاکمیت ده . او د دې دارو هدفونو د ترلاسه کېدلو پورې به دوام کوي .

نن چـې د قطـر پـه دوحـه کـې طالـب مشرـان د اشـغالګرو لـه ګوډاګیانو سره خبرو ته ناست دي . دا د دې دلیل نه ده چـې دوی بښـه خلک دي .ښه کارونه یې کړي .نه بلکې دوی په هیڅ دیـن، قـانون او نظام کې د بښلو لایق نه دي .د کافرانو په قانون کې هـم دوی د خپـل هیواد او ملت په وړاندې خائنین بلل کېږي؛ څکه دوی د خپل هېواد په اشغال کې د خپل کړېدلي ملت په ضد د اشغالګرو ترڅنګ دربدلي .

له دوی سره د طالب مشرانو ناسته یـواځې او یـواځې د دې لپـاره شوې چې دا د ولس یوه هیله وه چې بین الافغاني مـذاکرات پیـل شي . او د خبرو له لارې د هېواد مسئله حل شي .د وینو تویـدلو مخـه ونیـول شي .د افغانانو د خوښې خپلواک افغان شـموله اسـلامي نظـام حـاکم شي .طالب مشرانو د خپل اولس دغـې هیلـې او غوښـتنې تـه پـه درنـه وکتل .او د خپلو شل کلنو دښـمنانو او مـلي خائنـانو سره پـه یـوه میـز مذاکراتو ته کېناستل .

اوس انتخاب د طالب د مخالفو جهتونو پـه لاس کـې ده . چـې لاهم د ولس بچیان د خپل قدرت د دوام او امریکایي نظام د بقـاء لپـاره قرباني کوي د زرګونو عسکرو د سر په قیمت له دغه شړېدلي او فاسـد نظام څخه دفاع کوي .او که اسلامي نظام ته غاړه ګدي . دا دواړه لارې د دوی په وړاندې خلاصې دي .که دوی دغه طلایـي جـانس لـه لاسـه ورکړي .او د جګړې لار غوره کړې دوی به یو ځل بیا د الله رسول او د دې ملت په وړاندې ملامت او مختوري وي .

او د دې هېواد د اصیلو بچیانو په لاس به د عدالت میز ته راکـش کړی شي .ملت ته به د تېرو ظلمونو او حشتونو حساب ورکړي .دوی بایـد دا حقیقـت درک کـړي چـې لـه تېـرې څلویښـت کلنـې جګـړې وورسته مو اوس هېواد په یو حساس پړاو کې قرار لري .ملت مو د بین الافغاني مذاکراتو نتائجو ته په ډېرې بې صبرۍ سترګې پـه لاره ده .د موجوده نظام په شتون کې مو حتی په ښارونو او د دې نظـام د کنټـرول لاندې سیمو کې هم د هېوادوالو سر ، مال او نـاموس خونـدي نـه ده . چې په دې نزدې وخت کـې د قنـدهار پـه ولایـت کـې د یـوې افغـانې میرمنې په ظلم او وحشت سره شهادت او له یوه ماشوم سره لـه جنسـي تېرې نه ورسته د ظلم او وحشت او شهادت داستان لا هم د هېوادوالـو په زړونو کې ژوندی ده . په کابل او نورو ښارونو کې هره ورځ د غـلا، اختطاف او د پېسیو په سر د وژنو په سلګونو پېښې ترسره کېږي .

هېوادوال مو په هېڅ صورت کې د موجوده نظام بقاء نه غواړي . او نه دغه نظام د افغانانو ستونزې حل کولای شي .دغه نظام نه یـواځې افغانان بد ګني بلکې په نړیواله کچه هم د مفسـدو نظـامونو پـه لمـړۍ قطار کې شمارل شوی .

دلتـه د ظلمونـو ، وحشـتونو ، او حتـي لـه ارګ څخـه د جنسي- زوروني عیاشۍ او د د ندې په بـدل کـې د غلطـو جنسي- غوښـتو پـه هکله مختلفو رسنیو رپوټونه جوړ کړي .موجوده نظام د افغانانو وقـار، عزت او حیا ته ستر زیان رسولی .دلته هره ورځ د لګکیو لخـوا د هېـواد د ویاړلي تاریخ ، سترو شخصـیتونو او لویـو قومونـو تـوهین کېـږي .د امریکایانو او نورو نړیوالـو مرسـتندویه سـازمانونو لـه کړنـو او وینـاوو څخه هم جوتیږي چې نـور دوی لـه دې فاسـد نظـام سره د مرسـتې او کار کولو لیوالتیا نه لري .

دې پورته ټولو خبرو او حالاتو ته کتو اولس هیلمند ده چـې روان مذاکرات به یوې پایلې ته ورسېږي او پـه نتیجـه کـې بـه یـې هېـواد تـه سرتاسري سوله راشي . وبه ګورو چې د طالب مخالف جهتونه څومره د خپل اولس د هیلو د پوره کولو هوډ لـري .او څـومره د دې غمځپلـې اولس په درد دردمن دي .

په دې هیله چې روان مذاکرات به په لنډ وخت کې ولـس تـه د خوشحالۍ زیرې له ځان سره ولري .او په دې غمځپلي هېواد کـې بـه مو د سرتاسري سولې او اسلامي نظام د حاکمیت لامل شي .

(و ماذلک علی الله بعزیز)

# ټرمپ پوهیږي چې پر سرېو اوښتی



لیکنه أبو إحسان عامر

تاریخ شاهد دی چې د حق او باطل اوږده او تاریخي مقابله په خپله لمنه کې ډېرې زیاتې داسې پیښې لري چې باطل نه یوائې دا چې د حق په وړاندې پرمخي لوېدلی او ماته یې خوړلې بلکې د حق په حقانیت یې اقرار هم کړی.

حق خورا عیان دی، حق د خپلو گڼو ځانگړنو له جملې نه یوه دا ځانگړتیا هم لري چې په خپله رڼا د لوی متعصب دښمن سترگې بربښوي او د ځان د تسلیم مزي آن د باطل او مقابل و زړه ته غځوي، همدا لامل دی چې ډېر ځله باطل دې ته اړ شوی چې له خپلې کینې او پراخ تعصب سره سره بیاهم کله نا کله د حق پر حقانیت ژبه را وڅرخوي.

لکه څنگه چې څه دپاسه ۱۴ سوه کاله وړاندې قریشو او اهل کتابو به په خپله خوله له سختې دښمنۍ سره سره د رسول الله) صلی الله علیه وسلم (په حقانیت اعتراف کاوه همداسې په روان دور او افغانستان کې د حق او باطل په دې روانه شل کلنه سیالۍ کې موږ) لله الحمد(ډېر ځله داسې څه مشاهده کړل او وامو وربدل چې د وخت لوی باطل )امریکا ( د حق د وړکي او پر نبوي منهج روان ټولي ) إسلامي امارت د لښکرو( طالبانو ( }په وړاندې په هره نقطه کې ماته وخوړه او په حقانیت یې قائله شوه.

طالبان چې د جگړې او مصالحې په هره برخه کې له نبوي سیرت او سیاست نه رنگ اخلي، په دې پوهېدل چې زموږ د بري راز او د دارینو سرلوړی په باطل ضد مقاومت او په استقامت کې نغښتی دی.

قرآن کریم کې اَللـه (ﷻ)خپل پیغمبر ته په واستقم کما امرت سره امر کوي،

همدا د طالبانو د همدې امر امتثال او پر سختیو استقامت وو چې شوخه او خونخواره نړۍ یې حیرانه او د خبرو میز ته را کش کړه.

معلومه خبره ده چې د وخت سرکش باطل ) امریکا ( دې ځای ته په زاریو چا نه دی را وستې امریکا پر طالبانو له هیڅ قسم وحشت او ظلم نه مخ نه دی اړولی، امریکا کلونه کلونه پر دې تېر کړل چې څنگه طالبان له خپل هدف نه تېر کړي، له سترو جنگي ستراتیژیو سره سره یې د بمونو د مور تر څنگ بلا تېرې مرمۍ او ببرې روپۍ باران او مصرف کړې.

دا چې د طالبانو مینه له خلیلي او محمدي پاکې مینې نه زرغونیږي، طبعي ده چې د داسې خلک له دردونو خوند اخلي او د داسې یو چا ماته هم بیا نا شوني ده؛ موږ د سر په سترگو

ولیدل چې طالبانو په بیخي نشت امکاناتو سره وکولای شول چې د امریکا سد سر ته راولي او پر ملا او بندونو یې غوټه ماته کړي.

ټرمپ اوس ښه پوهېدلی چې پر سرېو اوښتی، د جنګ او صلحې په غبرګو برخو ) سنګر او دفتر ( کې ښه ناهیلی شوی؛ که له یوه اړخ نه یې په نظامي ډګر کې زرګونه ککرۍ د استشهاد څپو تل کړې له بل اړخ نه دفتر کې هم طالبانو ورته په قوي استدلال مړال داسې مات کړ چې دوی یې فکر هم نه وو کړی .

موږ شل کاله وړاندې لا امریکا ته ویلي وو:

افغانستان د پردیو نیواکګرو مقتل دی، څوک چې د مچیو ځاله ورانوي باید تاخته یې ښه زده وي.

خو بد بختې امریکا د افغاني تاریخ تر مطالعې د خپلو افغاني لاسپوڅو مطالبې ته اولویت ورکړ چې له کبله یې دا دی په ښه لوی غوښن ناورین واوښته؛ له درنو تلفاتو لیدلو وروسته اوس هڅه کوي په هره ممکنه لاره چې وي له دې افغاني ګرداب نه ځان وباسي.

ټرمپ عملي ولیدل چې طالبان له زیاتو فشارونو سره سره د نظامي مبارزې په سنګر او د مصالحې په دفتر کې یو اینچ هم له خپلې داعیې او هدف نه پر شا نه شول؛ دا ځکه، طالبانو ته ښه جوته ده چې د دښمن په وړاندې تنزل د تزلزل او تذلل پیلامه ده.

دا لومړی ځل نه دی چې ټرمپ اقرار کوي او وایي :طالبان سخت او ځیرک خلک دي.

بلکې تر دې وړاندې یې هم د تېر ۲۰۱۹ کال په لسمه میاشت کې د طالبانو په اړه داسې وویل:

طالبان جګړې ته د داسې تفریح په نظر ګوري لکه څنګه چې مونږ د فوټبال یا نورو لوبو ننداره ته ځو، طالبان په همدومره لیوالتیا د تفریح لپاره جګړې ته ځي.

هو :طالبان له غیبي څواک نه برخمند څواک دی) من کان لله کان الله له (دا هر څه ویاړونه او بریاوې د آلله (جَلَّ) ځانګړی نصرت او یو ستر احسان دی،طالبان نور هم د خپل اتحاد، اطاعت او استقامت په برکت کولای شي چې د نړۍ پر مخ او د تاریخ پر پاڼه لا هم ښه وځلیږي.



اوس چې د شل کلنې جهادي مبارزې د ثمرې وخت راغلی طالبانو ته په کار ده چې نور هم پر خپل مسیر او داعیه کلک شي او باید له إستقامت نه ستړي نه شي؛ د تصوف شیوخ د إستقامت په اړه زیاتوي :الإستقامة خیر من ألف کرامة .استقامت تر زرو کرامتونو غوره دی.

تر کومه وخته چې طالبان او إستقامت سره مله وي تر هغه وخته به یې مړال او إستقلال غبرګ خپل، پر ځای او ثابت وي.

إن شاء الله

وما ذالک علی الله بعزیز



# افغانان د اسلامي نظام غوښتونکي دي!!

حمزه حسيني

الله تبارك وتعالی فرمايلي:

ثُمَّ جَعَلْنَاكَ عَلَى شَرِيعَةٍ مِنَ الْأَمْرِ فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ (۱۸) سورة جاثية.

ژباړه: بيا مونږ ته (د دين) په معامله کې په واضحه لاره باندې ودرولې، نو ته د خپل دين پيروي کوه او ته د هغو خلکو د خواهشاتو پيروي مه کوه چې نه پوهېږي.

د الله تعالی حکمت دا دی چې انسان يې مدني الطبع پيدا کړی، له ټولنيز چاپېريال پرته ژوند نشي تېرولی، په يوازې ځان خپلې اړتياوې نشي- پوره کولی، رهبر، قانون او د ژوند تېرولو ټولو اسبابو ته محتاج دي، نو ځکه الله تعالی انسان ته په خطاب کې فرمايلي، "اِنيّ جَاعِلُکَ في الْأَرْضِ خَلِيفَةً" الايه (ژ: زه تا په ځمکه کې خليفه جوړوم) بناءً خليفه بې رعيته نه وي او رعيت يوه داسې نظام ته ضرورت لري، تر څو ځمکه اباده او انساني ژوند يکې دوام او استمرار ومومي، نو همدا انساني ژوند يو نظام ته اړتيا لري، چې هغه نظام به له الهي قوانينو څخه تشکيل شوی وي، د ناپوهانو د خواهشاتو څخه جوړ شوي مفسد نظامونه د هوساينې لامل نشي- کېدلی او نه هم څوک په نيمګړو نظامونو کې په ډاډمنه توګه ژوند کولی شي.

راځم اصلي مقصد ته چې د اسلامي امارت بنياد او بنسټ له اسلامي قوانينو تشکيل شوی دی، لازمه ده چې هر مؤمن او مسلمان له دې نظام څخه ننګه وکړي او پرې نږدي چې څوک دغه نظام په فاسدو نظريو مجروح کړي.

دا چې اسلامي امارت د الله تعالی په کامل نصرت له نظامي او سياسي پلوه د بريا تر پولو رسېدلی، مقابل جهت (کابل اداره) کوښښ کوي چې برياوو ته يې صدمه ورسوي او که نور هيڅ و نه کړي، د اسلامي امارت د کاميابې ديپلوماسۍ د ناکامۍ لپاره په ټول توان هڅه کوي، خو ممکنه نه ده چې دا ارمان يې پوره شي.

کابل اداره چې مستقيمًا د غربيانو لخوا را منځته شوې، نظام يې په غربي مفکوره متمرکز دی، اسلامي ارزښتونه يې تر پښو لاندې کړي دي او غواړي په نمايشي چيغو خپل روحيه بايللي نظامي او سياسي ارګانونه ډاډمن کړي او هر ځل همدا يوه ناره بدرګه کوي چې دوی به له اتلس کلنو لاسته راوړنو دفاع کوي.

دا خو ټولو هيوادوالو ته جوته ده چې اتلس کلن اشغال، له فحاشۍ، عريانۍ، قتلونو، شر او فساد پرته نور څه نه دي ايجاد کړي، دا د اتلس کلن اشغال زېږنده ده چې ډېری خود غرضو کړيو د خپلو شخصي- مفادو په خاطر د هيواد شتمني وپلورله، د سرحداتو په سر يې له ګاونډيو هيوادونو سره پټې معاملې وکړې، فساد خوښونکي او زورواکان يې د اقتدار په سترو عهدو ونازول، د مسلمانو مېرمنو او ځوانانو پت او عزت يې تالان کړ؛ هيوادوال نور نه غواړي چې د غربي ډيمکراسۍ علمبردارانو ته د اقتدار واګې په لاس کې ورکړي، بلکې دوی په هيواد کې د سوچه اسلامي نظام راتلو ته شېبې شماري ان شاء الله چې دا ارمان به يې ډېر ژر پوره او سترګې پرې يخې شي.

افغانان په نړیواله توګه هغه منل شوی قشر دی، چې د اسلامي نظام په دفاع کې یې نه هېرېدونکې قرباني ورکړې دي، نو د یو هیواد وګړو چې په دومره لوړه سطحه قرباني ورکړې وي، په دې لاره کې یې ډول ډول ازمایښتونه ګاللي او لا یې ګالي، څنګه به له اسلامي نظام پرته د غرب بې دینه او فاحش دیمکراسي نظام ومني؟

هوکې! افغانستان کې موجود ځینې خلک چې کورونه او د کورنۍ غړي یې په بهرنیو هیوادونو کې مېشت دي، نه غواړي چې اسلامي نظام راشي، نه د اسلامي ارزښتونو غم ورسره دی بلکې په لوی لاس یې د مخنیوي هڅې کوي، البته د هیواد اصلي اوسېدونکي نور له غربي دیمکراسۍ ستومانه شوي او نه غواړي د خپل مکلفیت په خلاف کارونه وکړي.

په دې هر څوک پوهېږي چې مسلمانان مجبور او مکلف دي چې اسلامي نظام او قانون به مني، که د مسلمانانو لپاره د خپلې خوښې او خواهشاتو ازادي وای، نو نبي کریم ﷺ به یې په اړه دا حدیث نه بیانولو چې، الدنیا سجن المؤمن و جنة الکافر، نو له دې مالومېږي چې مؤمنان به له عریانۍ، فحاشۍ، دیمکراسۍ او نورو مفسدو کړنو ځانونه ژغوري، که له دې بې دینه کارونو یې ځانونه و نه ساتل او د خواهشاتو تابع شول الله تعالی به یې په دردناکو عذابونو ودردوي.

ټولو مسلمانانو ته په کار ده، چې د اسلامي نظام ننګه وکړي، د راتلو لپاره یې زمینه سازي وکړي، خلک له فکري انحرافه وژغوري او په اسلامي منهج یې سوق کړي، ځکه همدا د بري راز دی او بس. که زمونږ ټولنه د خپلو غولېدلو هیوادوالو ذهنیت ته سالمه پاملرنه و نه کړي، د اسلامي نظام په ارزښتونو یې و نه پوهوي ممکن ټول د هلاکت کندې ته ولوېږو، مثال به یې د هغې سورۍ شوې کښتۍ شي، چې په دوه برخو وېشل شوې وي، لاندې کسان بره کسانو ته اوبه نه ورکوي او برني کسان د لاندېنیو کسانو مرسته نه کوي تر څو د کښتۍ سورۍ شوی بند کړي، نو په داسې حالت کې به ټول هلاک شي، په کار ده چې د اسلامي نظام راتګ ته په ټول توان زمینه سازي وکړو او خپل مسؤلیت اداء کړو. په همدې هیله.

## هجري کال ولې په "محرم" پیل کېږي؟

په عامه توګه ذهن ته دا خبره راځي چې رسول الله ﷺ به د هجري کال د لومړۍ میاشتې (محرم) په لومړۍ ورځ هجرت کړی وي. خو خبر داسې نه ده، بلکې هغه د ربیع الاول په میاشت کې هجرت کړی و. تقریبا ۲۲ د ربیع الاول مدینې منورې ته رسیدلی و.

نو په کار خو دا وه چې هجري کال هم په ربیع الاول پیل کیدلی، خو خبره داسې نه ده، بلکې هجري کال د محرم په میاشت پیل کېږي، د دې دوه مهم لاملونه یاد شوي دي: یو دا چې په محرم کې حاجیان کورونو ته ستنیږي.

د لومړۍ میاشتې د تعین په مشوره کې ځینې صحابه کرامو وویل چې د روژې له میاشتې به کال پیل کړو، خو عمر رضي الله عنه وویل چې نه له محرم نه یې پیل کوو، ځکه په دې میاشت کې حاجیان کورونو ته ورګرځي. او دا مشوره په ۱۷هـ کې شوې وه. (الحاکم)

دویم لامل یې دا دی چې اصلاً د هجرت هوډ په محرم کې شوی و. هغه داسې چې کله رسول الله حج یعني د ذوالحجې کې له انصارو سره وکتل چې د سیرت په اصطلاح کې "بیعة العقبة الثانیة" ورته وایي. نو له هغه وروسته لومړۍ میاشت محرم وه او په محرم کې د هجرت اراده او تیاري پیل شوه. نو ځکه دا د کال لومړۍ میاشت وټاکل شوه. فتح الباري لابن حجر

#۱٤٤۲هـ

## صلاحیتونه او ورتیاوې مخته کول

د رسول الله ﷺ له وفات وروسته د هغه د خلافت په اړه ابوبکر رضي الله عنه، عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته وویل: لاس راوغځوه، چې د خلافت لپاره بیعت درسره وکړم، عمر ورته وویل: ته زما نه ډېر غوره یې، یعني ته د خلافت مستحق او وړ یې، ابوبکر ورته وویل: ته زما نه قوي او پیاوړی یې، عمر ورته وویل: زما قوت به ستا د فضیلت او غوراوي ملاتړ وي. نو عمر له هغه سره بیعت وکړ. الطبقات الکبری لابن سعد ۳/۱۵۸}.

# د پکتیکا ولایت محترم والي

# مولوي محمد قاسم (خالد)

## له څرک سره ځانګړې مرکه کې:

**د پکتیکا پنځه ولسوالۍ مکملې مفتوحه دي، دپنځو ولسواليو ۹۵ سلنه خاوره او د نهو ولسواليو ۷۰ فیصده ساحه دمجاهدینو تړواک او اختیار لاندې ده.**

مرکه کوونکی :م شعیب شهامت

**درنو اوقدرمنو مینه والو دا ځل مو د پکتیکا ولایت له محترم جهادي مسؤل مولوي محمد قاسم خالد صاحب سره ځانګړې مرکه چمتو کړې ده چې لوستلو ته یې ستاسو پام را اړوو.**

**پوښتنه**:مولوي صاحب محترم که په پیل کې خپل ځان دڅرک مجلې درنو مینوالو ته ور معرفي کړئ ډېره مهرباني به مو وي ؟

الحمد لله وکفی والصلوة والسلام علی عباده الذین اصطفی امابعد :له هرڅه نه مخکې تاسو ته او ستاسو له طریق نه د افغانستان مؤمن او مجاهد ملت ته خپل سلامونه نیکې هیلې او احترامات وړاندې کوم او له تاسونه یوه نړۍ مننه کوم چې مونږ ته مو دا فرصت برابر کړ تر څو خپل آواز تر ګرانو هیوادولو پورې ورسوو.

محترمه زه مولوي محمد قاسم خالد د مرحوم مولوي صاحب سید عمر زوی د لوګر ولایت د برکي برک ولسوالي اوسېدونکی یم او في الحال د افغانستان د اسلامي امارت په تشکیلاتو د پکتیکا ولایت د مسؤل په حیث په جهادي خدمت بوخت یم.

**پوښتنه** :په عموم کې د پکتیکا ولایت جهادي وضعیت څنګه ارزوئ؟ سږ کال مجاهدینو کوم پر مختګونه کړي دي اوځه لاس ته راوړني لري؟

د پکتیکا ولایت جهادي وضعیت سږ کال الحمدلله د لوي الله جل جلاله په فضل او کرم سره ډېر زیات خوندور او د پام وړ ده. د سږ کال په جریان کې ګڼ شمېر سیمې او کلي د مجاهدینو په کنټرول کې راغلي دي ، او ددښمن له شر څخه خلاصې شوي دي او د دښمن ګڼ شمیر ډېر مهم چاړواکي په تعرضي او چریکي بریدونو کې له منځه تللي دي.

**پوښتنه:** که په پکتیکا ولایت کې د اسلامي امارت د تشکیلاتي او اداري فعالیتونو په هکله معلومات راکړئ د اسلامي امارت کومې شعبې هلته فعالې دي او اولس ته خدمات وړاندې کوي په دې اړه که لږ تفصیل راکړئ؟

د افغانستان د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې چې څومره اداري موجودې دي په پکتیکا ولایت کې هغه ټولې فعالې دي مسؤلین یې ټول په ساحه کې موجود دي ، د هرې اداري مؤظف هیئتونه په سیمه کې موجود دي عملاً په خپلو کارونو بوخت دي او خپل اولس ته خدمات وړاندې کوي چې د نمونې په ډول د څو ادارو د فعالیتونو یادونه کولئ شو.

۱ . د مؤسساتو کمیسون داسلامي امارت په تشکیلاتو کې هغه اداره ده چې د اولس په خدماتو کې فعاله ونډه لري ، په مختلفو ولسوالیو کې یې د مکاتبو او

کلینیکونو تعمیرونه جوړ کړي دي ، فرعـي لارې او سرکونـه یې جوړ کړي او جغـل انـدازي کـړي دي ، د اوبـو د لپـاره یـې لویې او وړې ویـالې ،او د اوبـو بندونـه جـوړ کـړي دي چـې د گومل ، چاربران ، اومنې ،جانیخیل ، متاخـان ،برمـل او نکـې ولسوالي یې د مثال په ډول وړاندې کولای شو.

همدغه راز د معارف کمیسون هم په ټولو ولسوالیو کې دیني مدارس ، عصري ابتدائیه ،او متوسطه مکاتب او لیسې فعـا لـې کـړي دي ، پـه یـادو مدارسـو او مکـاتبو کـې د افغانستان د اسلامي امارت د تعلیم او تربیې د کمیسـون لـه لوري تر تیب شوي نصاب تقریباً ٪۹۰ عملـي دی، او د دینـي مدارسـو او عصري مکـاتبو اسـتادان ښـه د امـن پـه فضـاکې خپلې چارې پر مخ وړي.

همدغـه راز د ملکـي تلفـاتو اداره هـم ښـه فعالـه ده د اولس شکایات اوري دهغو مشکلاتو ته شرعي او اصولي حل لاره پیدا کوي او مربوطه مراجعو ته یې راجع کوي.

فرهنگي کمیسون هم دعام اولس او بالخصوص د ځوان نسل په تربیت ،روزنه او ذهن سازي کې فعاله ونډه اخیسـتې ده ، وخت په وخت د اسلامي امارت مربوط نشراتي مـواد پـه اولس توزیع کـوي، او د شریعـت غـږ راډیـو خپرونـې هـم پـه اکثره ولسـوالیو کـې اوریـدل کیـږي عـام اولـس بالخصـوص ځوانان ښه استفاده ورنه کولای شي.

**پوښتنه** : د مجاهدینو تعامل له اولس سره او بالمقابـل د اولس تعامـل لـه مجاهـدینو سره څنگـه دی آیـا هغـوی د مجاهدینو له تعامل نه خوښ دي کنـه؟ او لـه مجاهـدینوسره همکاري لری کنه؟

داسلامي امارت قهرمانو مجاهدینو لـه امریکـا او د هغـو له متحدینو او غلامانو سره دا ۱۹ کاله جهادي مبارزه د اللـه جل جلالـه پـه ځـانگړې نصرت او د خپـل مجاهـد اولـس پـه همکاري ترسره کړې ده اولس په خپله غیږ کـې مجاهـدینو تـه پنـاه ورکـړې او هـره نوعـه همکـاري یـې ورسره کـړې ده ، مجاهدین دنبي علیه السلام د هدایت له مخې نه چې) مَـن لَـم یَشـکُرِالنَّاسَ لَـم یَشـکُرِ اللـه ؐ (لـه خپـل اولـس سره ښـه تعامل کوي او پـه اولـس بانـدې مکمـل تـرحم او شـفقت لـري څکـه چـې نبـي علیـه السـلام هـدایت کـړي ده) الرَّاحِمُـون یَـرحَمُهُم الـرَّحمن اِرحَمُـوا مَـن فِـی الاَرضِ یَـرحَمُکُم مَـن فِـی السَّمَاءِ (او داچې د افغانستان ملت مسلمان او مجاهد ملـت ده څکه خو د اسلامي امارت له مجاهدینو سره ښه تعامل او روابط لري او د مجاهدینو له ښو اخلاقواو ښه تعامـل نـه ډیـر خوښ او راضي دي ، همدا وجه ده چې پـه هـر رنگـه سـختو شرائطـو کـې د مجاهـدینو همکـاري تـه چمتـو او تیـار ډي او عملاً همکاري ورسره کوي.

**پوښتنه** :مولـوي صـاحب محـترم داچـې پکتیکـا یـوه لرغونې غرنۍ او گڼ میشـتې سـیمه ده هلتـه مختلـف اقـوام ژوند کوي طبعې خبره ده هرقـوم بـه خپـل عنعنـات عـرف او رواجونه لري ستاسو او د مجاهدینو گذاره هلته څنگه ده؟

هو د پکتیکا ولایت د افغانستان پـه نقشـه کـې یـو ډیـر ستر ولایت ده او مختلف قومونه دلته ژوند کوي تقریباً ٪۹۰ فیصـده نفـوس یـې لـه څلـورو اقوامـو نـه تشـکیلیږي سلیمانخیل،خروټي ،ځدراڼ او وزیر قومونه ، موږ او نور عـام مجاهدینو د خپلو حسنه اخلاقو په نتیجه کـې توانیـدلي یـو چې په ډیر لږ وخـت کـې مـو ځانونـه د قومونـو لـه عـاداتو ا و عنعناتو سره ځانونه بلـد ، او د هـر قـوم د عـاداتو او عنعنـاتو مطابق په هغه سیمه کـې ژونـد کـوو گـذاره مـو ډیـره ښـه ده الحمدلله هیڅ نـوع مشـکل نشـته اولـس هـم زمـونږ لـه ښـو اخلاقونه متأثر او هرنوع همکاري ته چمتو او تیار ده.

**پوښتنه** :که راته وواياست چې پـه پکتیکـا ولایـت کـې اولس په حقوقي موضوعاتو کې چاته مراجعـه کـوي؟ او هغـه کومې مهمې پېښې او موضـوعات دي چـې د مجاهـدینو پـه هڅو او توسط سره حل شوي دي؟

په پکتیکا ولایت کې اولس د خپلو موضوعاتو د حل لپاره مجاهدینو ته مراجعه کوي حتی د مرکز ښرنې له بازار نه هم مجاهدینو ته مراجعه کوي د ښرنې ملکي مسؤل راته وویل له ښار نه روزانه لسګونه عام خلک دوکانداران ،تجاران راځی د خپلو موضوعاتو د حل لپاره مونږ ته مراجعه کوي او مونږ د هغو موضوعات یا د مصلحینو له لارې حل کوو او که ضرورت ولیدل شي موضوع یې محکمې ته راجع کوو ، بناءً زه دا ویلی شم چې په سلو کې ٪۹۸ خلک د خپلو موضوعاتو د حل لپاره مجاهدیو ته مراجعه کوي ، ځکه چې د اسلامي امارت مسؤلین د خلکو موضوعات د شریعت په رڼا کې حل کوي ، د مظلوم حق د عدل او انصاف له مخې مظلوم ته ورکوي او ظالم ته د اسلام د اصولو له مخې جزا ورکوي چې دا د اولس آرزو او تمنا هم ده ، مونږ په ټولو ولسوالیو کې په تشکیلاتو کې د موضوعاتو د حل لپاره د ملکي مسؤلینو په حیث کسان تعین کړي دي هغه په کوم مسجد یا مدرسه یا بل کوم داسې عام ځای کې چې عام اولس لاس رسی ورته لري هملته روزانه موجود وي او خلک مراجعه ورته کوي ورسره په څنک کې محاکم هم ښه منظم فعال دي اکثره ولسوالی مستقلې محکمې لري ،البته په بعضې ځایو کې د یو لږ مشکلاتو له امله مو دوه ولسوالی سره یو کړي دي او یوه ابتدائیه محکمه مو ورته جوړه کړې ده ، او چې کله موضوع د اصلاح له لارې حل شي یا د محاکمو اصولي مراحل نهایي شي له هغه وروسته یې د اجراء لپاره نظامي مسؤل ته هدایت کوو چې هغه فیصله عملي او تطبیق کړي.

دلته به د څو مهمو موضوعاتو یادونه وکړو چې دمجاهدینو د اخلاص او هلو ځلو په پایله کې حل شوي دي.

۱ .د لوړګي دښته چې د پکتیکا او غزني په منځ کې واقع ده د دواړو ولایتونو اولسونو له ډیر وخت نه په دې موضوع کې جنجال وو د مجاهدینو په هلو ځلو سره مو هلته د دوي تر منځ یو حد فاصل ایجاد کړ او د دواړو لوریو حدود مو ورته معلوم کړل دایوه پیچلې حقوقي موضوع وه خو اوس مهال په جنایی موضوع بدله شوې وه خو الحمدلله دا مشکل حل کړل شو.

همدغه راز په پیرکوتي سیمه کې هم یو دوه پیچلي موضوعات وو چې د دوو قومونو په یاده موضوع کې لانجه وه یاده موضوع مو محکمې ته راجع کړه محکمې قاطع فیصله وکړله او فیصله تطبیق او اجراء شوه.

همدغه راز د پکتیکا د زیروک ولسوالی او دخوست ولایت سپېرې ولسوالي د اولسونو په منځ کې په یو غره باندې لانجه وه داهم یوه تکلیفي او پیچلې موضوع وه د ولایت له لوري په دې موضوع کې یو هیئت تعین شو د محاکمو له عالي اداري سره په مشوره یاده موضوع حل شوه او حد فاصل ورته وټاکل شو او د دواړو لوریو طرفونه مشخص او معلوم شول.

همدغه راز د سرحوضې د دمارزکو او دنکې ولسوالی د توریخیلو دقومونو په یوه غره باندې جنجال وو چې آن قتلونه هم پکې شوي وو دلته هم د ولایت د هدایت له مخې نه یو هیئت ورته تعین شو یاد هیئت شل شپې تحقیقات وکړل وروسته له تحقیقاتو هغه حقوقي بخش یې حل شو او جانبین وریاندې خوښ شول او فیصله ورته ابلاغ شوه.

دا یوځونموني وې نور هم ګڼ شمېر داسې مهم موضوعات شته خو دلته به په همدې اکتفا وکړو.

**پوښتنه** : مولوی صاحب محترم د پکتیکا ولایت عمومي نظامي وضعیت سږکال څنګه دی مجاهدین په نظامي ډګر کې کومې لاس ته راوړنې لري؟ او په کومو ساحو کې مجاهدینو پرمختګونه کړي دي او دښمن یې له هغو سیمو نه په شاه کړی دي؟ او په عموم کې د یاد ولایت څومره اراضی د اسلامي امارت د مجاهدینو تر چتر لاندې ده؟



د پکتیکا په ولایت کې سږ کال نظامي وضعیت الحمدلله ډیر خوندور او دپام وړ ده ، قهرمان مجاهدین له دفاعي حالت نه تعرضي حالت ته راوتلي دي ډیرې د پام وړ لاس ته راوړنې لري په مختلفو ولسوالیو کې د دښمن په اکمالاتي کاروانونو تعرضي بریدونه شوي دي لکه ارګون،خیرکوټ او یحی خیل ولسوالی چې په نتیجه کې یې دښمن ته سخت مالي او ځاني زیانونه اوښتي دي ګڼ شمېر اسلحې او مهمات ه غنیمت شوي دي همدغه راز په جانیخیلو ،خیرکوټ ،یحی خیل، متاخان ، او وازیخوا ولسوالیو کې هم ګڼ شمیر پوستې فتح شوي دي او ګڼ شمېر کلي او پراخې ساحې د مجاهدینو تر تسلط لاندې راغلي دي . خلاصه داچې د پکتیکا د ۲۲ ولسوالیو له جملې څخه ۵ ولسوالي مکملې مفتوحه دي لکه : ډیله ، نکه، چاربران، او منه او ګیانه ولسوالي او په پنځو ولسوالسو کې ٪۹۵ سلنه خاوره د مجاهدینو تر واک لاندې ده لکه برمل، وازیخوا، خوشامند ، متاخان، او زیږوک ولسوالي ، او په ۹ ولسوالیو کې ٪۷۰ څمکه د مجاهدینو تر تسلط لاندې ده ، صرف په دریو لکه یحی خیل، شکین، او تروه ولسوالي کې د دښمن وجود څه ناڅه زیات ده ، بناءً دا ویلي شو چې په پکتیکا ولایت کې الحمدلله ٪۷۰ سلنه خاوره د اسلامي امارت د مجاهدینو تر ولکې لاندې ده او په دغو سیمو کې اولسونه دکامل ډاډ او امن په فضاء کې ژوند کوي.

**پوښتنه**:که راته ووایاست د دښمن هغه کوم مهم افراد او چارواکي وو چې اولس ورنه په تکلیف وو او د اولس په غوښتنه د سږ کال په جریان کې د اسلامي امارت مجاهدینو له منځه وړي دي او اولس یې له شر څخه خلاص سوی دی؟

سږ کال د پکتیکا مجاهدینو په تعرضي تکتیکي او چریکي بریدونو کې د دښمن شل تنه مهم قومندانان له منځه وړي دي لکه:

۱ .دریاخان تلاش دسروبي ولسوالی امنیه قومندان وو او په خپله سیمه کې د اربکیانو مشر هم وو نوموړي په سروبي ،چاربران، اومنه او ګومله ولسوالی کې یې فعالیتونه کول او د یادو ولسوالیو عام اولسونه یې له ظلمونو څخه ډیر تنګ شوي وو بالآخره د یو خاص تکتیک کې یاد قومندان ووژل شو او اولسونه یې له شر څخه خلاص شول،خلکو د خوښي مجالس جوړ کړل جلسې یې جوړې کړلې او د نوموړي په مرګ یې د خوشحالی اظهار وکړ.

۲ .په جانیخیلو کې موسی خان او عید محمد د اربکیانو قومندانان وو په سیمه کې اولسونه د دوي له ظلمونو او وحشتونو نه ډیر سخت په تکلیف وو چې د مخامخ جګړې په ترڅ کې ووژل شول.

۳ .په خوشامند ولسوالی کې د اردو دقرارګاه قومندان د جلال آباد دشینوارو اوسیدونکی وو په ظلم او وحشت کې ډیر مشهور وو بالآخره د اردو له قرار ګاه سره په ۵۰۰ میتری فاصله کې د مجاهدینو د یو کمین په ترڅ کې و وژل شو.

۴ . په خیرکوټ کې د اربکیانو یو قومندان د شفیق په نوم چې په ظلم او وحشت کې ډېر مشهور وو د مخامخ جګړې په ترخ کې ووژل شو .

۵ .په خیرکوټ کې یوه سیمه ده دبکخیلو په نوم باندې او دکابل اداري په تشکیلاتو کې د یوې مستقلې ولسوالی په نوم نومول شوې ده د دې ولسوالی امنیه قومندان د میرعالم په نوم ډېر مشهور ظالم قومندان وو د مخامخ جګړې په ترخ کې ووژل شو.

٦ .همدغه دوه ورځې مخکې محمد آصف تو خي چې دپکتیکا د امنیت آمر وو په زابل کې هم عام اولس د ده له ظلمونونه سخت په تکلیف وو د یحی خیلو په ولسوالي کې د مخامخ جګړې په ترخ کې ووژل شو چې د پکتیکا او زابل اولسونه یې د تل لپاره له شر نه په امان شول او د مخابرې له لارې نه د زابل مجاهدینو هم د نوموړي د مرګ مبارکي راکړه دغه ۷ کسان هغه مشهور قومندانان وو د نورو قومندانانو تفصیلي لیست په لاندې ډول ده.

په ۲۰۲۰ کال په ۹ میاشتو کې په پکتیکا کې د کابل مزدوزې اداري ۲۰ نفره مهم قومندانان وژل شوي :

۱۹/۹/۲۰۲۰ نیټه د مخامخ جګړې په ترخ کې د پکتیکا د امنیت آمر آصف توخي ووژل شو او د عزیزالله کاروان وحشي ورور خانداده کاروان سخت ټپي شو

د ۸/۹/۲۰۲۰ نیټه ظالم اربکی قومندان عید محمد ووژل شو

د ۲۸/۴/۲۰۲۰ نېټه باندې د اربکیانوقومندان موسی جان ووژل شو

د۲۰/٦/۲۰۲۰ په جانیخیلو کې د مخامخ جګړې په ترخ کې د اربکیانو قومندان مجاهد و وژل شو د ۲۰۲۰/ ۱۵/۷ نیټه باندې د جانیخیلو بازار ته خیرمه د چاودنې په ترخ ګې د اربکیانو قومندان عبدالله سخت ټپي شو.

د ۲۳/۴/۲۰۲۰ د خوشامند ولسوالی چمبران سیمه کې د اردو قومندان شینواری قتل شو

د ۲۰۲۰ /۲/۲۰ نیټه باندې خبرکوټ کې ظالم قومندان شفیق و وژل شو

د ۱۱/٦/۲۰۲۰ نیټه باندې خیرکوټ کې قومندان میرعالم و وژل شو

د ۱۹/۷/۲۰۲۰نیټه باندې سروبي ولسوالی کې ظالم او وحشی قومندان دریاخان تلاش و وژل شو.

د ۱/٦/۲۰۲۰ نیټه باندې متاخان ولسوالی کې ظالم قومندان آدم و وژل شو

د ۲۰۲۰/ ۱٦/۵ یوسفخیلو کې ظالم قومندان ګل رحمن و وژل شو

د ۲۰۲۰ /۱۹/۹ نیټه باندې دیوسف خیلو پخوانی ولسوال او فی الحال اجرائیه مدیر و وژل شو

د ۱۰/۹/۲۰۲۰ نیټه باندې برمل ولسوالی کې د چاودنې په ترخ کې ظالم قومندان شفیق و وژل شو

د ۲۰۲/ ۳/۲ نیټه باندې د ظالم اربکي قومندان باګي زوي چې خپله هم اربکی وو ووژل شو.

د ۳/٦/۲۰۲۰ نیټه باندې یحی خیلو کې شریر اربکی سلیمان و وژل شو

د ۲۰۲۰ /۱۱/۵ د کابل اداري مهم کارکونکي عبدالخالق په وازیخواکې و وژل شو

**پوښتنه:**په عموم کې په پکتیکا ولایت کې کومې ستونزې وجود لري؟ د اولس غوښتنه له مجاهدینو او د اسلامي امارت له مشرتابه نه څه ده؟ هغه کوم کارونه دي چې باید د اولس د هوساینې لپاره وشي خو لا تر اوسه ندي شوي؟

پکتیکا ولایت ډېره پیچلې جغرافیه لري غرنی سیمې یې ډېرې زیاتې دي لارې یې ټولې صعب العبور او له تکلیفه

ډکې دي د ولايت په سطحه يوه لويه ستونزه د لارو او سرکونو خرابوالی ده بناءً د سرکونو او فرعي لارو جوړول په پکتيکا کې يوه حياتي مسئله ده ، همدغه راز د پکتيکا نفوس ډير زيات ده خلک يې د مکاتبو او کلينيکونو له کمښت سره مخ ده داهم يو عمومي مشکل ده ، همدغه راز په پکتيکا کې د کټواز په نوم يوه سيمه ده چې په دولس ولسواليو مشتمله ده ياده سيمه کې د ښنباک د اوبو نه شتون لويه ستونزه ده که دغو مشکلاتو ته د اسلامي امارت د مشرتابه له لورې پوره توجه وشي دا به په اولس بانديې ډير زيات شفقت وي ځکه چې ياد اولس له مجاهدينو سره ډيره زياته همکاري لري که څه هم يادو ستونزو ته يو اندازه توجه شوې ده خو پوره توجه ته اړتيا لري.

**پوښتنه:** داچې هيواد مو له يو بل حساى پراو څخه تېرېدونکی دی امريکايې ځواکونه ورځ په ورځ له افغانستان نه روان دي او په داخل کې له افغاني جهتونو سره هم د تفاهم کوشش روان دی د راتلونکي افغانستان په اړه څومره هيله مند ياست؟ ، تاسو له مجاهدينو او اولس سره په څنګ کې ياست اولس او مجاهدين څومره په خپلو مشرانو باور او اعتمادلري چې د اسلامي امارت پرېکړې ته به لبيک وايې؟

د افغانستان عام اولس په دين او هيواد مين اولس دی د اسلامي نظام د نفاذ لپاره يې بې شميره قرباني ورکړې دي د دوي د بېساره قربانيو په نتيجه کې انګريزي او روسي ښکيلاګګر له شرمونکې ماتې سره مخ شوي دي ، له امريکا او دهغو له متحدينو سره هم دا ۱۹ کاله د جهاد سنګر ګرم ساتل شوي ده او زموږ د مسلمان ملت د بې شمېره قربانيو په پايله کې امريکا په نظامي او سياسي ډګرونو کې له شرموونکې ماتې سره مخ شوې ده او اوس وتلو ته مجبوره شوې ده ، بنيادي هدف له دغو قربانيو نه په ملک کې دائمي سوله او د اسلامي نظام نفاذ ده دغه هدف ته د رسيدلو لپاره دوه لارې دي په سنګر کې دله دښمن سره جنګېدل چې دغه حالت فی الحال ښه ګړندی روان ده ، او بل د اسلام د مقدس دين د اصولو له مخې نه له دښمن سره تفاهم او مذاکرات دي اسلامي امارت دغه هدف ته د رسيدلو په خاطر دواړه لارې تعقيبوي ، نو په عموم کې دا ويلی سو چې د اسلامي امارت قهرمان مجاهدين دغه وضعيت ته ډير زيات خوشبين دي او د اسلامي امارت د مشرانو په ټينک او فولادي عزم باندې پوره باور او اعتماد لري او د اسلامي امارت مشرانو هرې پرېکړې ته به لبيک وايي ان شاءالله.

او له افغاني جهتونو سره مذاکرات خو فی الحال په مقدماتي پړاو کې جريان لري وبه ګورو چې مقابل لوری څومره اخلاص ښکاره کوي او د دوي استقلال او صلاحيت په کومه کچه باندې ده ، که د مذاکراتو په جريان کې مقابل لوری داسلام له سپيڅلي دين او خپل وطن سره پوره اخلاص ښکاره کړي او دخارجي استخباراتي کړيو له فرمايشي غوښتنو څخه ځان وساتي هيله مند يو چې د مذاکراو دغه پړاو به هم په کاميابی سره پای ته ورسيږي لکه څنګه چې له امريکايي جهت سره مذاکرات يوې مثبتې نتيجې ته ورسيدل.

ډيره مننه محترم مولوي صاحب چې له ډېرو مصروفياتو سره سره مو مونږ ته وخت راکړ او د پکتيکا ولايت د روان جهادی وضعيت په اړه مو له مونږ سره معلومات شريک کړل جزاکم الله خيراً.

له تاسو نه هم ډيره ډيره مننه کوم چې مونږ ته مو دا فرصت راکړ تر څو د پکتيکا ولايت په نظامي او اداري وضعيت له تاسو سره خپل معلومات شريک کړم

...جزاکم الله

# ولې د کابل له ادارې خلک ناراضه دي؟

حبيب مجاهد



د ارګ اوسني واکمن شايد د افغانستان په معاصر تاريخ کې منفور ترين واکمن وي چې نه خو د نړۍ په سطحه کوم حيثيت لري او نه هم په خپل ولس کې د پام وړ مقبوليت لري .د دې عدم مقبوليت ښکاره ثبوتونه په ټولنيزو رسنيو او عامه ميډيا کې د ولس هغه نفرت دی چې په بيلابيلو بڼو څرګنديږي او له چارواکو او حاکمې ادارې سره خپله کرکه څرګندوي.

په تيرو ولسمشريزو انتخاباتو کې له ۳۵ ميليونه نفوس څخه يوازې د څو لکه خلکو برخه اخيستل، چې زياتره يې دولتي کارمندان وو د دې بل ثبوت دی چې واکمنه اداره په ولس کې ځای نه لري .په هر حال ... راځئ دلته هغه عوامل راوسپړو چې د ارګ او ولس تر منځ يې د نفرت او لريوالي ديوالونه درولي دي.

لومړی دليل دا دی چې واکمنه اداره ديني او ملي صبغه نه لري .دا اداره ۱۹ کاله وړاندې د امريکايي الوتکو لخوا پراشوټ شوې او په دې مظلوم ولس د ټوپک او بمبار په زور تحميل شوې ده .د اداره په هغو قواعدو بناء شوې کوم چې په غرب کې د نظام سازۍ لپاره ټاکل شوي دي . د دارې په جوړښت او طراحۍ کې زموږ د مؤمن ولس ارزښتونو او اصولو ته هيڅ پام نه دی شوی .

لکه څنګه چې د دې ادارې جوړښت او چوکاټ پردی دی، همدغسې يې چلوونکي او چارواکي هم اکثره له ولس څخه پردي او د نورو ګټو ته وفادار دي .د دې ادارې مشر- اشرف غني هغه څوک دی چې د عمر ډيره برخه يې په غربي نړۍ کې تېره شوې ده .هغه کاملا په غربي روحيه او نظريه تربيه شوی دی او له افغان ولس سره فکري تړاو نه لري.

د کابل ادارې د نه مقبوليت بله وجه دا ده چې په نړۍ کې دولتونه د ولس لپاره د مور او پلار حيثيت لري . دولتونه ولس ته د آرام او عزتمند ژوند زمينه برابروي .د ولس د سرلوړۍ، عزت او پرمختګ لپاره کار کوي .اما د کابل اداره له افغان ولس سره داسې چلند کوي لکه ليوانو



ته چې بې ځښتنه رمه په لاس ورشي .په تیرو اتلسو کلونو کې حاکمو چارواکو د ولس او هیواد په نوم راغلې تـولې پیسې چور او په شخصي اکاونټونو کې یې جمع کړې .کله یې چې په دې پیسو خیټې نه شوې مړې، نو یې د ځمکـو غصب، د رشوت په نوم د ولـس لوټلـو، اختلاس او د ملـي شتمنیو په چورتالان پیل وکړ .

د دې چور تالان یوه ښه بیلګه د کابل بانک لـوټماري وه، دغـه بانـک چـې د افغـان ولس د غریبـو اقشـارو لکـه کسبګر، معلـم، مـامور او عـادي کارمنـدانو پیسـې پـه کـې راجمع وې، د لوړ پوړو چارواکو لخوا یې پیسې په بیلابیلـو نومونو وایستل شوې او د خلیج په هیوادونو کـې وربانـدې ځمکې رانیول شوې .

له مادي چور او تـالان عـلاوه د ولس پـه وړانـدې بـې رحمي، وژل، بندیانول، تحقیر او تعذیب بـل هغـه څـه دی چې دغه اداره یې د خلکو تر منځ د نفرت په سمبول بدله کړې ده .د کابل چارواکي خپـل ولـس تـه د غلـیم پـه نظـر ګوري .کله چـې پـه نیمـه شـپو پـه ولسي۔ کلیـو او کورونـو چاپې وهي له خلکو سره داسـې چلنـد کـوي چـې هغـه د سخت ترین غلـیم پـه وړانـدې هـم جـائز نـه وي .د ولسي۔ کورونو ته په نیمو شپو ورلویدل .د سـپین ږیـرو، ځوانـانو ، ښځو او حتی ماشومانو چارماري کول .د ولس کورونه لوټل او په آخر کې یې ولسي کورونه په بمونـو الـوزول هغـه څـه دي چې د کابل اداري د ځانګړو ځواکونو له عمـده کـارونو ګڼل کیږي.

له دې علاوه زموږ د ولس معنوي اقدارو ته سپکاوی او نه پاملرنه بل هغه څه دی چې د کابل اداره ولس ته پـردی معـرفي کـوي .د ارګ چـارواکي درګـرده لګیـا دي پـه افغانستان کې د غربي فرهنګ د پیاده کولو هڅـې کـوي . خپل دین، فکر، فرهنګ، رواجونه او عادات د پسـماندګی او بدویت په تـور تورنـوي او کوښـښ کـوي چـې د غربیـانو دودونه او عادات په نوي نسل کې ترویج کړي.

د همدې عواملو په اساس د کابل ادارې خپـل اعتبـار او وزن له لاس ورکړی او حاکمیت یې یوازې د پلازمینـې او ولایتي مراکـزو تـر حـده را محـدود شـوی دی .پـه همـدې محدودو سیمو کـې هـم د ارګ واکمنـو حاکمیـت یـوازې د وسلې او پیسو پـه زور دوام لـري .کـه د زر او زور خـبره نـه وای شاید دغه اداره وختي لا له منځه تللې وای.

# طالبان څوک دي..؟

## ایا طالبان په نولسمه پیړۍ کې پیدا شول؟

لیکوال: جواد عمري

**د طالبانو سابقه څه ده، او تر شایې کومې افسانې پرتې دي؟**

هغوي چې د اسلام له ستر او وياړلی تاريخ نه ناخبره دي او يا هغوي چې د طالب په دوښمنۍ کې يې سترګې حق نه شي لېدلای او هر څه يې منفي تعبيروي ، د طالب په پيژندګلوۍ کې غلطي کوي له ځانه خبرې جوړوي او په طالبانو رنګا رنګ تهمتونه لګوي، راځئ چې طالب د تاريخ په پاڼو کې ولټوو، له کينې او مبالغې پرته قضاوت وکړو.

که اسلامي تاريخ مو لوستلی وي نو ضرور به مو د اصحاب صفه نوم اوريدلی وي، اصحاب صفه هغه چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم شاګردان ؤ، هغوي خپل کورونه، اولادونه، مالونه او ټوله شتمني ددې لپاره پريښې وو د مسجد نبوي په صفه( چوتره) کې به ناست وو چې د الله جل جلاله دين زده کړي، د قران او حديث علم زده کړي تر څو چې د الله جل جلاله دين بيا نورو خلکو ته ورسوي، همدوي ول چې له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه يې ديني درسونه يادول، په علمي ډګر کې همدوي د قرآن او د احاديثو حافظان وو، خو چې کله به د جهاد اواز پورته شو تر ټولو مخکې به دوي د جنګ لپاره تيار ولاړ وو، دغه د صفي طالبان ؤ چې د وخت ستر ظالمان او داسلام سر سخته دښمنانو ته يې د عبرت درسونه ورکړل، لکه عبد الله بن مسعود رضی الله چې ددې امت د فرعون ابوجهل نه يې سر ور پرې کړ، بلال حبشي رضی الله عنه چې اميه بن خلف يې د جهنم کندې ته وليږه.

هو دوي طالبان وو طالبان اوسنی نه دي بلکې طالبان ۱۴۰۰ سوه کاله پخوانی مخينه لري.

هغه د بدر او د احد غازيان، هغه د خيبر او د مکې فاتحان، هغه د موته او د تبوک قهرمانان ټول طالبان وو، هغوي چې په يمامه کې يې د نبوت دعوادار مسيلمة الکذاب سره وجنګيدل، او کذاب يې سره د لښکره مات کړ او د جنهم کندې ته يې واچوه، د سالم مولی حذيفه غونډې قاريان او غازيان ټول د رسول الله صلی الله عليه وسلم طالبان وو .چاچې د حضرت علی رضی الله عنه په زمانه کې هغه خوارج چې د اسلام په جامه کې د اسلام دښمنان ول، ټول شوم اهداف يې شنډ، نيست او نابوده کړل هغوي هم طالبان ول.

که د جنګ صفين واقعه وګورئ او که د يرموک، هغه چې د روم د قيصر امپراطوري يې نسکوره کړه او د فارس د کسری اتش ګدې اور يې مړی کړ هو ټول د دينې زده کړو زده کړيالان وو.

که په تاريخ کې لږ روسته راشو او په ۷ هجری صدی کې د محمد بن قاسم د سيند فاتح قصه ولولو چې په اتلس کلنۍ کې يې دسيند د جهادي لښکر سپاسالار وو د دولس زره مجاهدينو سره يې په سيند حمله وکړه، تر فتحې ورسته يې تر بيرغ لاندې يو لک او شل زره کسان دده د امر په انتظار په وسلو سمبال مجهز ولاړ وو، دا د اتلس کلن

سپسالار جنګي مهارت، اوچت اخلاق، په دين کې پوه، په اسلامي اصولو پابندي او د اسلام سره بې کچې مينې ښکاره ثبوت دی چې د سيند خلکو د نفرت پر ځای بې کچې مينه ورکړه، د نجات فرښته او دوهم لوی ديوتا( رب النوع)يې وباله، او د سيند د خلکو په منځ کې يې ديو مهربانه پلار او نيک زړي ورور لقب وګاټه، هو دا کم عمره سپاسالار ددينې زده کړو زده کړيال)طالب (وو.

د کم عمره سپاسالار فتوحات، لاسته راوړنې او برياوې د وخت حاکم، امير سليمان بن عبدالملک ته د منلو وړ نه وو، هغه وو چې دغه ستر فاتح يې په شهادت ورسولو، او يو ځل يې دا خبره بيا ثابته کړه چې د وخت کم ظرفيته حاکمان هيڅ کله دا نغواړي چې د داسې فاتحانو او سر ښندونکو اتلانو کارنامې دې واوري، خو بر عکس تاريخ اتل اتل ثابتوي او خاين او غدار ته د غدار په سترګه ګوري.

هو!دا وياړلې کارنامې ټول د طالب دي .

که د افغانستان په تير تاريخ نظر واچوو، د انګريزانو پر ضد په دريو مشهورو جګړو کې علماوو د لارښوونکو او د قومندانانو رول ادا کړ، په دې جګړو کې ډير علماء او طالبان شهيدان شوي، چې دکندهار ښار د طالبانو هديره، د بولدک د طالبانو هديره او د قندهار د هرات دروازې د شهيدانو چوک يې ژوندي مثالونه دي، چې دافغان مورخ مرحوم علامه عبدالشکور رشاد په وينا " دا ټول قبرونه د هغو طالبانو دي، چې د انګريزانو سره په مخامخ جګړه کې شهيدان شوي دي."

د ثور په اوومه نيټه د بدمرغه او خونړۍ کودتا وروسته کمونستانو واک تر لاسه کړ، کمونستان د افغان ولس له فکر، کلچر او عقيدې نه پردي وو، کمونستان افغان ميړني ولس ونه زغمل، هغه وو چې د شوروي يرغل عملي دور نه وروسته کمونستانو د خپل فکر د تحميلولو لپاره يې په دې بيچاره ولس د ظلم لړۍ شروع کړه او په خاص ډول يې ديني طبقه خپل هدف وګرځاوه، هغه ووچې تر يو لک پوري ديني علماء، روحانيون او د ديني ډلو غړي يې ترې تم کړل چې يوه نيمه لسيزه وروسته يې ملت په شهادت خبر شو، علماء کرامو د جهاد اعلان وکړ، په دغه جهاد کې دولس اصلي او اساسي رهبري او د قيام حقيقي پيل ديني علماؤ وکړ چې ولس يې په اکثريت ډول تر شا ولاړ وو.

پدې وخت دکمونستانو او روسانو سره د جهاد لپاره تنظيمونه را منځ ته شول په دغو ټول تنظيمونو او جبهاتو کې طالبانو کډون درلود، چې کارنامې او قرباني يې د يادولو وړ دي، چې زيات شمير طالبان د مولوي نصرالله منصور په تنظيم کې ول، هغه د طالبانو سياسي جوړښت" تنظيم طلبه " په خپل لاس ډير منظم کړي و، او د طالبانو دا تنظيم ډير خوځنده، متحرک او فعاله ؤ او د تنظيم د مشر لخوا ورته ډيره پام لرنه کيده .

همدا شان د حرکت تنظيم سره د مولوي محمد نبي محمدي تر قيادت لاندې ډيرو طالبانو جهاد کاوه چې حرکت تنظيم د" جميعت طلبه حرکت "په نامه مستقيل سياسي جوړښت لاره، په دې وخت کې امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله هم په عملي جهاد کې د حرکت تنظيم د يو غړي او قومندان په حيث جهاد کاوه، او ډير مخلص ملګري طالبان هم ورسره ول.

روسته بيا حزب اسلامي، اتحاد اسلامي او دملي اتحاد جبهې هم ديته ورته جوړښتونه جوړ کړل، چې د ديني طالبانو لپاره يې بېلې سياسي ډلې او څانګې تاسيس کړې.

کله چې روسي ځواکونه د ۱۳۶۷ه ش د سلواغې په ۲۶ مه له افغانستانه ووتل، د جهاد له بريالي کيدو نه روسته ځيني واک غوښتونکو مشرانو د واک په سر خپل منځي شخړې پيل کړې، چې په نتيجه کې هغه جنايتونه ترسره شول چې د کمونستي نظام نه وروسته دا جنايتونه کم ساري بلل کيږي، په نتيجه کې يې پاټکي نظام منځته راغی هرچابه په خپله خوښه حکومت کاوه، دهيچا سر، مال او ناموس په امن کې نه وو، چې له دې ټولو حالاتو څخه د ملت هر عام او خاص وګړی خبر دی.



ملت ددې جنایتونو نه نور تر پوزې رسیدلی وو .او دیو داسې چا انتظار کاوه چې دا ملت ددې بـدبختیو وژغـورې، هغه وو چې د ملا محمد عمر مجاهد تر مشرـي لانـدې یـو ځل بیا د طالبانو تحریک په یو نوي شکل سره په غورځنگ راغي، ملت یې بې ساري هرکلی وکړ، او د نجات فرښتې یې وبللې، هغه و چې د ولس په ملاتړ او همکاری سره طالبـانو واک تر لاسه کړ.

طالبانو په سختو شرایطو کې پنځه کاله حکومت وکړ، د غربت او د نړیوالو بندیزونو سره یې داسې امنیت قایم کړ چې خلک یې په مثال کې وراندي کوي، د الله ج په څمکه یې ډیر وخت روسته د الله جل جلاله نظام حاکم کړ، حدود یې قایم کړل، هیواد یې له تجزیې نه وژغوره، مسلمانان یې د یو واحد او اسلامي بیرغ لاندې را ټول کړل او د ابادی او بیا رغوني په لور یې گړندي قدمونه اوچت کړل .خـو پـه ډیـر تاسف سره دغه ارمان ته ونه رسـیدل او د نړیـوال کفـر لـه طرفه د طالبانو حکومت نسکور کړل شو.

د ۲۰۰۱ کال د امریکې د اشغال نه وروسته طالبان سره خواره شول او مشران یې د بیا تنظیم په چارو بوخـت شـول هغه وو چې طالبـان بیـا سره مـنظم شـول او د امریکـې پـه خلاف یې عملاً جهاد پیل کړ، دا اتلس کاله د اوږدې مبارزې وروسته یو ځل بیا الله ج (طالبانو ته بریا ورکړه، او د قطر په پلازمینه کې یې له امریکـا سره د اسـتکبار د مـاتې تـړون لاس لیک کړ، اوس د بین الافغاني مذاکراتو لپاره تیاری روان دی .تمه کیږي چې ددې مذاکراتو په نتیجه کې به یو سوچه اسلامي نظام منځته راشي، او دا مزاکرات بـه ددې ملـت د هوسـایني او سـوکالی سـبب شي ان شاألله.

طالبان د علم په ډگر علماء، دجهـاد پـه ډگـر کـې مجاهـدین او د قربـانیو پـه ډگـر شهیدان دي .

که د دین د زده کړې مراکـز دي پـه طالبـانو ډک دي، که دجهاد سنگرونه دي په طالبانو ډک دي، که زندانونه دي په طالبانو ډک دي نو د شهیدانو هدیرې هم په شهیدو طالبانو ډک دي.

طالبانو د اسلام په سر له هیڅ چا سره معاملـه او سـودا نده کړې، طالبان په تاریخ هیڅ د پیغـور داغ نـه لـري، هـو طالبان د قربانیو هغه مثال دي چې د یـوه میلمـه پـه سر یـې خپله ټوله بادشاهي جار کړه، طالبان هغه اتلان دي چـې پـه نشت امکاناتو یې د نړې سوپر طاقت له ۴۳ کفري هیوادونو سره مات کړ.

که ووایو چې طالبان د تـاریخ اتـلان دي دا بـه مبالغـه نوي، دا فکر چې طالبان به وځپل شي او ختم به شي یـوازې حماقت دي او بس.

بالاخره طالبان د رسول الله صلی الله علیـه وسـلم ددې حدیث مبارک مصداق دي :

عَنْ مُعَاوِيَةَ ، يَقُولُ : سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، يَقُولُ " : لَا يَزَالُ مِنْ أُمَّتِي أُمَّةٌ قَائِمَةٌ بِأَمْرِ اللَّـهِ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ ، وَلَا مَنْ خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَهُمْ أَمْرُ اللَّهِ وَهُمْ عَلَى ذَلِكَ "

ترجمه :له معاویه) رض (نه روایت دي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي چې ویل یې .زما په امت کې به یوه ډله وي چې دالله تعالی په احکامو به پابنـد ولاړ وي، دوي ته به دچا دښمني او مخالفت ضرر نشي رسولي او دوي به په هم دې حال وي تر قیامته پورې.



مرکیال عاکف مهاجر

دهیواد نومیالی جید عالم

# شیخ الحدیث مولوي واعظ

## څرک مجلې سره په ځانګړې مرکه کې:

**طالبانو ته به دا وایم چې د همیشه لپاره په جماعت لمونځ کوئ، علماء دې اتحاد کوي له اختلاف دې ځانونه وساتي، اختلاف کې هیڅ کټه نشته ټل مسلمانان او خاصکر علماء اختلافونو زیانمن کړي دي.**

**جناب شیخ صاحب د څرک مجله د خپلو نومیالیو شیوخو او استاذانو سره د مرکو په لړ کې دا ځل تاسو انتخاب کړي یاست تر څو مو درانه لوستونکي او مینه وال د خپل ژوند له لوړو ژورو قیمتي تجربو او نصائحو څخه مستفید وګرځوي خو پیل به یې ستاسو له تعارف وکړو.**

**شیخ صاحب:** په لومړي سر کې د افغانستان اسلامي امارت د مطبوعاتي څانګې مسئولینو خاصکر د څرک مجلې مدیر، او همکارانو ته او بیا ستاسو له لارې د څرک مجلې لوستونکو ته

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

مننه کوم چې مونږ ته مو وخت راکړ خدای جل جلاله دې وکړي چې ستاسو د ظن (ګمان) مطابق هغه څه و وایم چې زما او ستاسو لپاره د اخرت یوه توښه وګرځي.

زما نوم مولوي واعظ د لوګر ولایت د برکي برک ولسوالۍ اوسیدونکی چې له نن څخه ۹۲ کاله وړاندې په ۱۳۰۷ کال د میزان میاشت کې د پنجشنبې په ورځ دغې دنیا ته راغلی یم او لا یې هم میلمه یم خو د پیدایښت ورځ دقیقه راته نده معلومه اما میاشت او کال یې همدغه وو چې دغه کال بیا زمونږ او ستاسو په عرف کې په سال سقاوي یا سقاوي کال باندې هم شهرت لري.

**پوښتنه: لومړني او وروستني درسونه مو چیرته او له چا څخه لوستلي وو.**

شیخ صاحب: زمونږ او ستاسې عمومي دود او دستور داسې ده چې ماشوم جومات ته د زده کړې لپاره لیږو زمونږ کورنۍ یوه علمي کورنۍ ده پلار او تره یعنې کاکا مې دواړه ښه ملایان وو زما کاکا مولوي محمد جان صاحب چې د والد صاحب په څیر مې هغه هم یو ښه نوم درلود زیاتو طالبانو به پرې درسونه ویل او ګڼ شاګردان یې درلودل هغه مهال د لوګر ولایت محمداغې ولسوالۍ اړوند په ګمران کلي کې وو لومړني درسونه مې له هغه سره و ویل او منځني درسونه مو بیا له خپل والد صاحب او له یو بل استاذ څخه چې په قاضي صاحب مشهور وو د محمداغې ولسوالۍ په کتب خیلو کلي کې ترسره کړل.

میېذي مو هم په محمداغه ولسوالۍ کې د حرکت انقلاب اسلامي له امیر مولوي محمد نبي محمدي صاحب څخه په مغل خیلو کلي کې ولوستله.

دا چې امیر صاحب یو خورا ستر او غښتلی عالم وو ورروسته مو شیږ کاله په برکي برک کې ورسره تیر کړل او د فنونو وروستي کتابونه مو د وړې دورې د ځینې کتابونه په شمول ټول له همده نه ولوستل چې هغه مهال یې په علمیت کې ساری نه درلود.

دا چې د وړې دورې ځینې کتابونه مې پاته ول هغه مو بیا د لوګر مرکز اړوند پادخواب شانه کلي کې له ملا محمود او مولوي فقیرمحمد صاحب څخه ولوستل.

د درسونو پای او لویه دوره مو په دوه نیم کاله کې د غزني په قلعه جواد کې د حضرت صاحب مدرسه کې له شیخ سلطان جان صاحب سره وکړه، خو دستاربندي مو بیا په څرخ کې د مغل خیلو میر صاحب څخه وکړه چې مخکې مې هم استاذ وو بیضاوي او د تکمیلې ځینې کتابونه مې ترې ویلي وو.

**پوښتنه: لومړی تدریس مو چیرته پیل کړلو؟**

**شیخ صاحب:** له فراغت وروسته مو دولس کاله د لوګر مرکز اړوند د ده مغلان په جامع جومات کې وکړ وروسته بیا څه موده په تنګي وردګ او څه په سپین ورسک کې خو به ده مغلان کې خکه ډیر خوښ وم چې طالبان زیات وو نو طبعا به خوښ وم درس مو ښه روان وو.

شپږ کاله مې بیا د کابل په ده سبز کې وکړ یو کال بیا د لوګر په خوشی ولسوالی کې وم، خو د روسانو له راتګ دوه کاله وړاندې بیا د درس لپاره د کندز دشت ارچي ولسوالی ته وکوچیدلم هلته مې دوه کاله درس وکړ چې په وروستي کال یې روسانو په افغانستان یرغل وکړ هغه مهال مجاهدین ډیر کم او کمزوري وو زما یو ورور هم د روسانو پروړاندې جهادي سنګر ته د یو سرلاري او قومندان په توګه ودانګل چې ډیر نومیالی او میړنی مجاهد وو بالاخره د روسانو له لوري په شهادت ورسید، وروسته زه له هغه ځای راپناه شوم خپل ځای لوګر ته راغلم، چونکې د ورور ماشومان مې هلته وو هغو پسې بیا ولاړم چې هلته روسانو ونیولم شپاړس ورځې بندي وم وروسته یې بیرته خوشې کړم، د ورور کورودانه او بچیان مې بیا لوګر ته له ځان سره راوستل.

**بوښتنه: په ټوله طالبي کې هغه کوم څه ډیر سخت وو چې تاسو ته ورسره مخ شوی یې؟**

**شیخ صاحب:** د طالبي حالات وي خامخا لوړې زورې راځي ځیني وخت به ډوډۍ نه وه آن د شفتلو خوړلو ته به مجبوره وو، ځینې وخت به ځای سم نه وو او خیني وخت به نور مشکلات وو خو سخت به هغه وخت وو چې درس به مو سم نه وو.

**پوښتنه: کله مو په دولتي محاکمو یا بل کوم منصب باندې دنده ترسره کړې؟**

**شیخ صاحب:** هوکې! کله چې په افغانستان د طالبانو واکمني وه اسلامي امارت وو شریعت حاکم وو هغه مهال مو د سترې محکمې په دارالافتاء کې د هیواد له قاضی القضات ستر عالم مولوي نورمحمد ثاقب صاحب سره په دارالافتاء کې دیارلس میاشتې تیرې کړي چې تر هغه وروسته بیا په هیڅ کوم منصب نه یم پاته شوی او دا دی اوس مهال هم خپل کلیوالي درس کوم.

**پوښتنه: د یو عالم په توګه مو علماء او طالبانو ته څه نصیحت ده؟**

شیخ صاحب: طالبانو ته به دا و وایم چې د همیشه لپاره په جماعت لمونځ کوئ، معروفه او مشهوره بېباکي مه کوئ او علماء دې اتحاد کوي له اختلاف دې ځانونه وساتي، اختلاف کې هیڅ ګټه نشته تل مسلمانان او خاصکر علماء اختلافونو زیانمن کړي دي د علماء اختلاف زیات زیانونه لري.

**پوښتنه: ځیني خلک وایي چې شیخ صاحب محمد نعیم اخندزاده مشهور په کوڼ اخندزاده هم ستاسو شاګرد دی که مشهور استاذان او شاګردان مو راته وښیاست؟**

**شیخ صاحب:** نه هغه مې نده شاګرد خو مشهور استاذان مو نو همدغه دي امیر صاحب د حرکت، د مغل خیلو میر صاحب میر عبدالستار، ملا محمود صاحب، مولوي فقیر صاحب، د اکوړې مولوي پاچاګل صاحب او شیخ سلطان جان صاحب او شاګردان مو بیا مولوي موساجان صاحب د خروار، مولوي عبدالجبار صاحب، سید یحیا اغا صاحب، مولوي عبدالروف صاحب او د څرخ ملاګل صاحب چې د حضرت صاحب خلیفه وو.

**یادونه:** مولوي واعظ صاحب اوس هم په ډیر ضعیف حالت کې د دین له خدمت څخه مخ نده اړولی او په کمزورې بدن له کور سره خواته مدرسه کې په داسې حالت کې درس کوي چې وایي درې ځله مو په کور او مدرسه امریکایانو چاپه واچوله چې یو ځل مو کور کې څو تنه میلمانه مجاهدین هم شهیدان شول او مدرسې ته مو بیا اربکیان په څو واره راغلل تالاشي یې وکړې غوښتل یې هسې مو تنګ کړي، خو وایي اوس الحمدلله سیمه ټوله د اسلامي امارت د مجاهدینو تر کنترول لاندې ده په ارامه فضا کې تدریس کوي.

د هغه په ځینو ځانګړو خصلتونو کې یې ځوی یو دا راته ډیر عجیب خصلت وښود چې مولوي صاحب یو چراغ (لاټین) لري تل ورسره وي آن کله چې حج ته تللی وو له ځان سره یې حرم ته هم وړی وو، هغه وایي چې د حج د سفر پر مهال یې دغه چراغ (لاټین) باندې هلته ځانته چای پخولو او کله چې ډیر یخ وي تهجدو ته راپورته کیږي، نو همدغه چراغ (لاټین) باندې ځانته د اوداسه لپاره اوبه هم ګرموي.

زوی یې مولوي محمدالله صاحب د خپل والد صاحب په اړه وایي چې هغه کله هم تهجد نه دي قضا کړي چې ډیر سخت مریض وي هم یې کوي، دا دی د ۹۲ کلونو په عمر کې دی خو اوس هم تهجد کوي او د درس دومره شوقین دی چې اوس هم راځي همدلته دغو ماشومانو ته سبق وایي.

د مولوي واعظ صاحب څلور زامن دي چې درې یې علماء او د یو یې بیا عصبي توازن برابر نه دی.

# د اولاد د روزنې ۱۲۹ مشورې

د .أحمد بن عثمان المزيد+د .عادل بن علي الشدي
ژباړه :سعد کټوازی

د ماشومانو روزنه هم يو فن ده چې ډېر کم خلك پرې نه پوهېږي، پر دې موضوع لسګونه واړه او غټ کتابونه ليکل شوي، موږ مناسبه وګڼله چې په څو داسې ګټورو اصولو کې له هغو څخه د ځينو لنډيز را ټول او را واخلو چې د ماشومانو په سالمه روزنه کې ورته د هغوی والدين او روزونکي ښته زياته اړتيا لري.

عقيده:

۱ -:اولاد ته کلمه طيبه او په هغې کې نفې او اثبات وښيه؛ په لا» إ «هلکې له الله تعالی پرته د نورو د خدايي نفې ده او په» إ لا ا «اللهکې يواځې د خدای ج لپاره د خدايي ثابتول دي.

۲ -:دا ورته وښيه چې موږ د څه لپاره پيدا شوي يو﴿وَمَا خَلَقْتُ الجِنَّ وَالاِنْسَ اِلاَّ لِيَعْبُدُوْنَ﴾ او د عبادت او بندګۍ بشپړه مانا هم ورته وښيه.

۳ -:د دوزخ له اور، عذاب، د خدای ج له ترټنې او قهر څخه يې ډېر مه وېروه، ترڅو په ذهن کې يې د الله تعالی ياد له دغو وېرونکو شيانو سره ونه تړل شي.

۴ -:داسې يې جوړ کړه چې له الله تعالی سره تر ټولو زياته مينه ولري، ځکه همغه موږ پيدا کړي، روزي راکوي، خوراك، څښاك او جامه را کوي او موږ يې مسلمانان ګرځولي يو.

۵ -:په پټه له غلط کار کولو يې و وېروه، ځکه الله تعالی يې په هر حالويني.

۶ -:هغه نېکې ډېرې ورباندې کوه چې الله تعالی يکې يادېږي، لکه د خوراك، څښاك، وتو او ننوتو پر وخت «بسم» ا «الله شريف ويل، له خوراك او څښاك وروسته »الحمد «الله ويل، د حيرانتيا پر وخت«سبحان ا «اللهاو داسې نوري کليمې ويل.

۷ -:د نبي عليه السلام د ځينې ښو صفاتو په ور ښودلو، د هغه په مخکې د نبوي سيرت د کيسو کولو او هر وخت چې د نبي عليه السلام نوم واخيستل شي پر هغه باندې درود ويلو سره اولاد ته له نبي عليه السلام سره مينه ور پيدا کړه.

۸ -:د قضاء او تقدير عقيده د هغه په ذهن کې مضبوطه کړه چې خدای ج څه و غواړي هغه کېږي او څه چې خدای ج نه غواړي هغه نه کېږي.

۹ -:ماشوم ته د ايمان شپږ اصول ) پر خدای ج، پرښتو، کتابونو او رسولانو، په ورځ د آخرت، د خدای ج له لوري د خير او شر په تقدير او له مرګ وروسته ژوند (ور وپېژنه.

۱۰ - :د عقيدې په باره کې ځينې پوښتنې ورڅخه وکړه (وابونه يې ور زده کړه) ؛ لکه :ستا رَب څوك دی؟ نبي دې څوك دی؟ موږ د څه لپاره پيدا شوي يو؟ څوك روزي، خوراك او څښاك راکوي؟ څوك مو له ناروغۍ څخه روغوي؟ توحيد څو رنګه دی؟ شرك، کفر او نفاق څشی دي؟ د مشرك، کافر او منافق لپاره کوم کوم عذابونه دي؟ او داسې نور.

عبادت:

۱۱ -:اولاد ته د اسلام پينځه جوړښتونه )شپږم يې جهاد (ور وښيه.

۱۲ -:پر ماشوم د لمانځه تمرين وکړئ؛ »مُرُّوا أَبْنَائَكَمْ بِالصَّلاَةِ لِسَبْعٍ وَاضْرِبُوْهُمْ عَلَيْهَالِعَشْرِ «ترجمه :اووه کلني اولادونه مو پر لمانځه ودروئ او په لس کلنی کې يې د لمانځه پابند کړئ.

۱۳ -:اولاد مسجدونو ته درسره بوزه او د اودس طريقه ور وښيه.

۱۴ -:د مسجدونو اداب، درناوی او سپېڅلتيا ور وپېژنه.

۱۵ -: د روژې تمرين ورکړه چې تر لوېدو پورې پرې عادت شي.

۱٦ -:ماشوم دې هومره اندازه قرآن کريم، صحيحو حديثونو او ذکرونو يادولو ته وهڅوه څومره چې د هغه په وس کې وي.

۱۷ -:چې هغه) د قرآن، حديثونو، ذکرونو (په يادولو کې پر مخ ځي، نو جائزه ور کوه، ابراهيم بن أدهم رحمه الله وايي : پلار مې راته وويل :بچيه ! حديث شريف زده کړه، هر حديث چې دې واورېد او ياد دې کړ يو درهم/روپۍ به در کوم، نو ما په همدې طريقه حديث زده کړل.

۱۸ -:اولاد) د قرآن، حديثونو، ذکرونو (په يادولو او تکرارولو ډېر مه ستړی کوه، زړه يې ترې توربړي.

۱۹ -:دېته دې پام وي چې ته د خپل اولاد لارښود يې، نو که تا خپله په عبادت کې غفلت او سستي وکړه او پر ځان دې بوج وباله، اولاد دې درڅخه أغېزمن کېږي او عبادت پر ځان بوج ګڼي، ځيني وخت لا بيا ترې تښتي هم.

۲۰ -:اولاد پر صدقې ور کولو أموخته کړه چې کله کله ته صدقه کوې او هغه دې ويني، يا چې کوم شی صدقه کوې د اولاد پر لاس يې مسکين ته ورکړې او له دې غوره او ښه دا ده چې هغه تشويق کړې چې له جمه کړې پاکې روزي څخه صدقه ورکړي.

خويونه:

۲۱ -:که غواړې چې اولاد دې رښتونی وي، نو زړه ته يې وېره مه ور اچوه.

۲۲ -:د رښتونولي او أمانتداري ګټه ور ته وښيه.

۲۳ -:د اولاد په ناپامۍ کې د هغه أمانت داري وازمايه.

۲۴ -:اولاد ته د زغم کولو او له بېړي/تلواري د ځان ساتلو تمرين ور کړه، دا کار په روږه باندې د هغه د أموخته کولو له لارې او ياهم د داسې بل کار په تمرين ور کولو سره کولای شې چې زغم او په کراره کولو ته اړتيا لري.

۲۵ -:د اولادونو ترمنځ برابري کوه، د اولادونو ترمنځ برابري هغو ته د عدل خوی ور زده کولو تر ټولو ښه طريقه ده.

۲٦ -:د عملي ځايونو يا ځيني هغو کېسو له لارې اولاد په قرباني ورکولو عادت کړه چې د قرباني ورکولو ستاينه پکې وي.

۲۷ -:اولاد ته د دوکې، خيانت، غلا، دروغو منفي نتيجې ور په ګوته کړه .

۲۸ -:که اولاد دې په کوم ځای کې زړورتيا وښوده، نو ستاينه يې وکړه، جائزه ور کړه او زړورتيا ورته وښيه چې يو ښه او ضروري کار کول دي.

۲۹ -:سختي مه ورسره کوه، خدای مکړه په وېره، دروغو او بې زړه توب يې أخته کړې.

۳۰ -:له عاجزي، نرمي او کبر څخه ځان ساتلو سره مينه ور پيدا کړه.

۳۱ :په دې يې وپوهوه چې خلك په تقوا او نېکو کارونو يو پر بل غوره او ښه کېدای شي، په پلرګنی، وړتيا او مال نشي-غوره کېدلای.

۳۲ -:اولاد پوه کړه چې د ظلم انجام ډېر کرکجن دی، بېلاري ببرته خپله پر سړي را ګرځي او خيانت سړی د بربادۍ لور ته بيايي.

۳۳ - اولاد ته د هغو شيانو تر منځ توپير وښيه چې هغه يې يو له بله نه سره پېژني؛ لکه :د مېراني او بېباکی، د حياداری او شرم، عاجزۍ او سپکتيا، پوهي او دوکې تر منځ توپيرونه.

۳۴ -:اولاد پر سخا عادت کړه چې په خپل کور کې سخي و اوسي او خپل خير له نورو ونه سپموي.

۳۵ -:هيڅ وخت او خاصکر له اولاد سره وعده خلافي مه کوه، په دې سره د هغه په طبيعت کې د تعهد او ژومنتيا ښه والی نقش کېږي.

چلند او ادبونه:

۳٦ -:پر زوی سلام واچوه.

۳۷ -:د اولادونو تر مخ په ځان لوځولو کې بې پروايي مه کوه.

۳۸ -:له ګاونډيانو سره ښه چلند کوه.

۳۹ -:اولاد ته د ګاونډي حقونه ور زده کړه او د هغه د ځورولو خطر ته يې متوجې کړه.

۴۰ -:د مور او پلار فرمانبرداره اوسه، له خپلوانو سره خپلوي پاله او خپل اولادونه پکې درسره کړه.

۴۱ -:اولادونه په دې پوه کړه چې خلك له پاکو او هغو ماشومانو سره مينه کوي چې نور نه ځوروي.

**نور بيا...**




# منځني ختيځ کې

## حالات پرکوم لور روان دي ؟

شهيدزوی

که په غور وليدل شي نو دمنځنـي ختيځ حـالات د ډېرې لويې خرابۍ پر لور روان دي؛ دا ويل به بې ځايه نـه وي چـې پـه ۱۹۴۸م کال کې دغاصب اسرائيلي دولت درامنځته کېدو نـه را وروسته نن په منځنـی ختـيځ کـې ډېـر سـتر بدلونونـه رامنځتـه کېدونکي ښکاري؛ واک ته دټرمـپ درسـېدو نـه پـس د منځنـي ختيځ او په ځانګړي ډول داسرائيلو پـه هکلـه د امريکـا پاليسـۍ ډېر تغير موندلو؛ اوسنۍ کړنلاره دټرو وختونـو نـه بېخـي بدلـه ده؛ د اسرائيلو په حمايت کـې ډېـر تېزوالـی راغلـی او امريکـا پـه کمه موده کې دتمې خلاف ګڼ داسې اقدامات وکـړل چـې پـرې دننه اسرائيلي دولت قـوي؛ پـر سـيمه يـې خـوف لا زيـات اوپـه سياسي لحاظ دټرو وختونو په پرتله ډېر ځواکمن شو.

دټرمـپ د واکمنـۍ پـدې لـړې مـودې کـې چـې غاصـب اسرائيل په ځومره تېـزۍ مـخ پـه وړانـدې ولاړل لـه دې وړانـدې دامريکا ديو ولسمشر د واکمنۍ پر مهال هـم پـه دومـره تېـزۍ مخ په وړاندې نه وو تللي.

په ۲۰۱۷م کال کې چې ټرمـپ بيـت المقـدس د اسرائيلـو لپاره د پلازمېنـې پـه صـفت اعـلان کـړ ورسره ډېـرې لـويي نـړۍ خپل مخالفت ښکاره کـړ خـو ټرمـپ ددې مخـالفتونو هـيڅ پـروا ونه لرله؛ تر ننه په خپلې پرېکړې ولاړ دی او د اسرائيلـو پـه اړه د امريکا دهرې پرېکړې نه دنړۍ دحمايت د راجلبولو هڅې کوي.

ددې ترڅنـګ ټرمـپ د فلسـطيني دولـت سره د روابطـو دپرې کولو او ورباندې دامريکا دمرستو ودرولو پرېکـړه هـم کـړې وه چې دې دواړو اقداماتو په عربي نړۍ کـې ډېـر لـوی اضـطراب رامنځته کړی و او ګڼو عربـو هېوادونـو دامريکـا ددې اقـدام سره خپـل مخالفـت هـم ښـکاره کـړ خـو دا چـې دا مخالفـت هسـې نمايشي او موقت و نو دامريکا په دريځ کې يې هيڅ کـوم بـدلون رامنځته نکړ بلکې پرعربو هېوادونو يې

داسرائيلو په رسميت پېژندلو لپاره فشـار روان وسـاتلو تـر دې چې هڅو يې نتيجه ورکړه او دا دی دعربو متحده امـاراتو پـه علنـــي ډول اسرائيـــل پـــه رســـميت وپېژنـــدل؛ ور سره يـــې د ډيپلومـاتيکو اړيکـو جـوړول اعـلان کـړل او د دواړو هېوادونـو ترمنځ پدې اړه تړون رامنځته شو.

پدې تړون کې دامريکا دولسمشر ټرمپ رول ډېر ښـکاره و چې ورسره د منځنـي ختـيځ او عربـو هېوادونـو پـه اړه د امريکـا کړنلاره هم لا روښانه شوه.

امريکا غواړي چې نور عرب هېوادونه هم دآزاد فلسـطيني دولـت لـه غوښـتنې تېـر؛ داسرائيلـو تـر حاکميـت لانـدې دفلسطينيانو لپاره دمدني حقوقو په منلـو راضي او اسرائيـل پـه رسـميت وپېـژني؛ همـدا دفلسـطين دسـتونزې حـل وګڼـي او همدلته دفلسطين ستونزه حل وګڼل شي.

عـرب هېوادونـه لا لـه وړانـدې دامريکـا اتحاديـان دي خـو اوس چې دچين داقتصاد تېز استحکام امريکا يوځه اندېښـمنه کړيده نوامريکا ته اوس دعربو هېوادونو پخوانۍ ملګرتيـا دمنلـو وړ نده ؛ اوس امريکا له عربو هېوادونو دامريکا په څنـګ کې سـم ودرېدل غواړي.

له دې څوک انکار نه شي کولای چې لا هم په ټولې نـړۍ کـې د امريکـا سره پـه نظـامي او اقتصـادي ډګرونـو کـې څـوک

دسیالۍ نشته؛ دا یقیني ده چې امریکا ته اوس هم دسعودي عربستان اوځني نورو عربو هېوادونو ته په ډېر کم نرخ تېل روان دي خو امریکا دعربو هېوادونو تېلو ته دپخوا په څېر نده محتاج؛ د۲۰۱۸م کال پورې سعودي عربستان دنړۍ تر ټولو ستر تولیدونکی او صادرونکی هېواد و؛ دتېلو دصادرونکو هېوادونو تنظیم اوپیک باندې دسعودي عربستان غلبه وه خو په ۲۰۱۸م کال کې امریکا دنړۍ تر ټولو ستر دتېلو تولیدونکی هېواد وګرځېد.

نو د تېلو په بابله امریکاعربو ته نوره اړتیا نه لري ځکه خو اوس له عربو اتحادیانو غواړي چې هره پرېکړه دې یې په سر سترګو مني؛ همدا به ددوئ د وفادارۍ اعلان وي او همدا به له امریکا د ځان جارولو ثبوت وي.

اوس د امت اجتماعي ګټې او مسائل په کلي ډول له نظره غورځېدلي دي؛ په عربو او عجمو ټولو هېوادونو کې اوس دهېوادونو سره اړیکې د شخصي ګټو لپاره وي؛ هر هېواد اوس بل ته د دوستۍ لاس یواځې د خپلو ګټو لپاره ور اوږدوي نو که اسرائیل دفلسطین خاوره قبضه کوي؛ دفلسطین دمسلمانانو پر ضد یې وحشت له ټولو حدودو وځي او که هند ټول کشمیر نیسي؛ ټول مسلمانان په خپلو کورونو کې محاصره کوي؛ هره ورځ پرې بریدونه کوي،ځوانان زندانونو ته وړي پرمېرمنو جنسي-تېري کوي  له دې روان وحشت نه هم مسلمان حاکمان ځانونه نه خبروي؛ نه د هند سره خپلې اړیکې پرې کوي؛ نه ورنه ددې ظلمونو د ودرولو غوښتنه کوي او نه دخپلو کشمیري ورونو په حمایت او دهند د وحشت پر ضد چرته اواز پورته کوي.

د اوس په پرتله هاغه وخت هم ډېر ښه و چې عربو حاکمانو د فلسطین د ازادۍ لپاره ناره پورته کولې؛ اتحادونه یې جوړول؛ د اسرائیلو پر ضد جنګونو ته تیارېدل او ټولو عربانو اسرائیل خپل تر ټولو ستر دښمن ګڼلو.

متأسفانه چې اوس دلته د حاکمانو حالت ډېر بدل شویدی اوس د عربو هېوادونو کابو هر مشر- سره دخپل واک ددوام فکر دی؛ قومي او دیني حمیت له منځه تللی؛ دفلسطین دآزادۍ خبره یواځې کمزورو مظلومو فلسطینیانو ته پرېښودل شویده ؛له یو دوه هېوادونو پرته نېږدې ټولو د اسرائیلو په باره کې دریځ نرم کړی؛ او داسې عرب هېوادونه هم شته چې به یې اسرائیل خپل سرسخته دښمن ګڼلو؛ د فلسطیني مبارزینو نه به یې حمایت کاوه ، ورسره به یې مرستې کولې خو اوس یې حاکمانو اسرائیلو ته د دوستۍ لاسونه ور اوږده کړیدي او فلسطیني مظلوم مسلمانان چې دخپلې خاورې او ړومبۍ قبلې لپاره سرونه قربانوي تروریستان یې ګڼي.

هغه اسرائیل چې دفلسطیني مسلمانانو ځمکې یې قبضه کړیدي اوپه زور یې پکې خپل دولت اعلان کړیدی؛ دمسلمانانو قبله یې نیولې؛ دمېرمنو او کوچنیانو په شمول یې په زرونو مظلوم مسلمانان زندانونو کې اچولي دي؛ له یوې لسیزې زیاته موده وشوه چې دغزې مسلمانان یې تر محاصرې لاندې ساتلي دي؛ په مسلسل ډول پر مظلومو فلسطیني مسلمانانو درانده بمونه غورځوي او په خپلو کورونو کې یې وژني ؛ نن عرب حاکمان دخپلو ورونو همدې قاتل دولت سره دخپل قدرت دساتنې او شخصي مادي ګټو په موخه دښوارېکو دجوړولو په لټه کې دي؛ دمسلمان ملت اجتماعیت او اتفاقي پرېکړو ته تاوان رسوي ؛ امت دوه ټوټې کوي او هغه څه کوي چې تر ننه ترې لا ډېرعجم حاکمان ځان ساتي.

دعربو متحده ایالات د اسرائیلو سره د اړیکو دجواز لپاره دا پلمه وړاندې کوي چې د اړیکو دشتون په صورت کې به له اسرائیلو له لوري پر فلسطینیانو دحملو د ودرولو او د فلسطینیانو دحقوقو غوښتنه کولای شي چې د اړیکو د نه شتون په صورت کې به یې غوښتنه کابو ناشوني وي.

خو دا هسې دځان غولول دي؛ هرڅوک پوهېږي چې اسرائیلي دولت داسې سپین سترګی او مغرور دولت دی چې دملګرو ملتونو اداري دقرار دادونو او غوښتنو پروا نه لري نو د اماراتو په څېر دکمزورې هېواد غوښتنه به څه ومني؟!

دهمدې تړون نه څو ورځې پس د اسرائیلوطیارو په فلسطیني سیمو په داسې حال کې حملې وکړې چې داسرائیلي دولت نمایندګانو ددې تړون د توثیق په موخه په اماراتو کې شتون درلودلو.

صهیونستي دولت دا تړون دخپل ځان لپاره ډېر ستر بریالیتوب ګڼي؛ له دې انکار هم نه شي کېدای چې دا داسرائیلو بریالیتوب دی او پدې کار دآزاد فلسطیني دولت هیلې کمزورې شویدي خو دا فکر سم ندی چې ګینې پدې

سره په عربي نړۍ کې د اسرائيلو پر وړاندې په کرکې کموالی راغلی دی؛ د اسرائيلو په هکله د دولتونو د دريځ دنرمېدو او پټو اړيکو د رابرسېره کېدو نه پس په عامو عربانو کې د فلسطيني مسلمانانو سره همدردي او د اسرائيلو پر وړاندې کرکه زياته شويده.

اوس داسلامي نړۍ زياتره هېوادونه د خپلو ګټو او دامريکا خوښې ته په پام سره د هېوادونو سره د دوستۍ او دښمنۍ پرېکړې کوي اوکابو ټولو اجتماعي مصالح له پامه غورځولي دي.

او هغه اقدامات چې وړاندې به ترې پراسلامي نړۍ مسلطو حاکمانو ډېره کوله او پرې به شرمېدل اوس يې ښه علني کوي او پرې دهيڅ دشرم احساس نه کوي.



داسې عرب هېوادونه شته چې لا دمخه يې له اسرائيلو سره اړيکې درلودلې خو دا اړيکې يې نه ښکاره کولې؛ ډېرې پټې به يې ساتلې چې اردن يې ښه مثال دی؛ ار دن يو له هغو ۴ عربو هېوادونو و چې په ۱۹۴۸م کال کې دغاصب اسرائيلي دولت دقيام نه پس يې پدې قابض دولت حمله کړې وه ؛ هماغه اردن چې د ۱۹۶۷م کال دعربو او اسرائيلو په جنګ کې ترې اسرائيلو بيت المقدس او لويديځه غاړه ونيوله دهمدې اردن دبادشاه عبدالله د اسرائيلو د تر ټولو اول لومړي وزير ډيويډبن ګوريان سره دبرتانې په منځګړيتوب پټې جوړې اړيکې وې چې د پاچا عبدالله دمړينې نه پس دهغه ځوی شاه حسين هم دخپل پلار په څېر دا اړيکې ښه په مينه په پټه پاللې چې له همدې امله يې په اسرائيل دښمنو هېوادونو کې خپل اعتبار له لاسه ورکړی و.

د۱۹۶۷م کال په جون مياشت کې دعربو او اسرائيلو تر منځ په رامنځته شوي جنګ کې اسرائيلو دشام نه دګولان ځوکې؛ دمصر- نه دسينا دښته او د اردن نه بيت المقدس او ټوله لويديځه غاړه ونيوله؛ کله چې په ۱۹۷۳م کال کې شام او مصر داسرائيلو نه دخپلو سيمو دبېرته نيولو په موخه پر اسرائيلو حمله کوله نو د شام ولسمشر- حافظ الاسد او د مصر- ولسمشر- انورسادات اردن له ځان سره راشامل کړ خو پرې دبې اعتمادۍ له امله يې ورته دحملې داصل نېټې( ۶ اکتوبر) پر ځای اوونۍ وروسته نېټه وښووله خو بيا هم هغه خيانت وکړ په سبا يې اسرائيلو ته پټ سفر وکړ او داسرائيلو لومړۍ وزيرې ګولډامايرته يې وويل چې د اکتوبر له ۱۰مې نېټې وروسته پر اسرائيلو بريد کېدونکی دی؛ اسرائيلو لا خپل احتياطي عسکر نه وو راپوره کړي چې د اکتوبر په ۶مې نېټه پرې حمله وشوه او اردن ايله په همدغې نېټې خبر کړای شو.

د تېر په څېر دې جنګ کې هم داسرائيلو په مقابل کې يادو هېوادونو شکست وخوړ چې ورسره مصر- دجنګ له لارې داسرائيلو په مقابل کې دبرياليتوب نه نااهيلی شو نو يې داسرائيلو سره د اړيکو جوړولو پرېکړه وکړه او په ۱۹۷۷م کال کې د مصر ولسمشر- انور سادات اسرائيلو ته سفر وکړ او په همدې سفر کې يې داسرائيلو پارلمان ته وينا هم وکړه؛ دا دعربي نړۍ لومړی مشر- و چې اسرائيلو ته يې ښکاره سفر کړی و نو ځکه پرې ټوله اسلامي نړۍ سخته خفه وه؛ د مصر- پرېکون وشو او دعرب ليګ او اسلامي کانفرانس نه وويستل شو خو چې په ۱۹۹۴م کال کې ديو بل عرب هېواد اردن

داسرائیلـو سره علنـي اړیکـې پیـل او ورسره یـې امنیتـي تـړون لاسلیک کړ نو پر ضد یې په اسلامي نړۍ کې هغسـې غبرګون رامخې ته نه شو لکه د مصر په مقابل کې چې رامخـې تـه شـوی و.

اوس دعربو متحده امارات دریم عـرب او ړومبنـی خلیجـي هېواد دی چې د اسرائیلو سره یې په رسـمي ډول ډیپلومـاتیکې اړیکې جوړې کړې.

متأسفانه چې داخل هم په عربو هېوادونو کـې ددې تـړون پر وړاندې هغسې غبرګون رامخې ته نه شو لکه څنګه یـې چـې تمه کېدلـه نـو ځکـه دنړۍ زیـاتره خلـک فکـر کـوي چـې عربـو دفلسطین دخرڅلاو پرېکړه کړیده.

دیادولو وړ ده چې په تېـرو وختونـو کـې دعربـو رسـنیو لـه لارې داسـې راپورونـه هـم خپرېـدل چـې پکـې د ورکـړل شـویو معلوماتو له مخې لا ډېر وړانـدې یـانې د ۲۰۱۴م کـال راهیسـې دعربو په متحده اماراتو اوخصوصاً پـه دوبـۍ او ابـو ظهبـۍ کـې داسرائیلي یهودي سوداګرو سوداګریزې هلې ځلې روانـې دي؛ خصوصاً دقیمتي ډېرو په کارو بار کې دوئ ډېـر پـرمخ تللـي دي؛ دقیمتي ډېرو لږ تر لږه ۱۱ ستر مرکزونه داسې دي چـې ۴ سـتر اسرائیلي یهودان یې مالکان دي.

پـه عربـو رسـنیو او پـه ځـانګړې ډول الجزیـره کـې ددواړو هېوادونـو تـرمنځ د پټـو روابطـو پـه اړه وخـت ناوخـت معلومـات خپرېدل چـې اوسـنی اقـدام دخپـرو شـویو دې معلومـاتو د کـره توب ښه ثبوت دی.

دلته دا خبره ډېره خطرناکه ده چې پدې تـړون کـې داهـم راغلي دي چې اسرائیل به دپاتې عربو او نورو اسلامي هېوادونـو سره هـم د ښـو روابطـو جوړولـو هڅـې کـوي او امریکـا او دعربـو متحده امارات به ددې هدف لپاره شریکې هڅې کوي.

نو ځکه د منځنـي ختیځ دچارو شنونکي وایې چې دعربـو دمتحده امـاراتو او اسرائیلـو تـرمنځ رامنځتـه شـوی دا تـړون پـه اصل کې دسعودي عربستان او اسرائیلـو تـرمنځ د ډیپلومـاتیکو اړیکو دجوړولو لپاره له پخوا جوړ شوی پلان دی.

اوس خو دامریکـا لـه لـورې پـه رسـمي ډول دا دعـوی هـم شویده چې داسرائیلـو او امـاراتو تـر مـنځ رامنځتـه شـوی تـړون دسعودي عربستان په خوښه رامنځته شوی دی.

نوځکه دسعودي عربستان په هکلـه دا اندېښـنې وې چـې شاید څه موده وروسته د اماراتو اقدام ته ورته اقدام وکړي خـو د اوس لپـاره دا اندېښـنې هغـه مهـال یـو څـه راکمـې شـوې چـې سعودي اعـلان وکـړ چـې د آزاد فلسـطیني دولـت لـه رامنځتـه کېـدو وړانـدې داسرائیلـو سره د اړیکـو رامنځتـه کېـدل ناشـوني دي.

د عربو دمتحده اماراتو او اسرائیلو تر منځ درامنځته شـوي تړون نه پس دټرمپ سره په تلیفـوني رابطـه کـې هـم د سـعودي پاچا سلمان بن عبدالعزیز ویـلي و چـې د ازاد فلسـطیني دولـت درامنځته کېدو شرط دسعودي لـه لـورې د وړانـدې کـړای شـوي عرب امن پلان د پیل نقطه ده.

دیادولو وړ ده چې په ۲۰۰۲م کال کې سعودي عربسـتان د فلسطین دستونزې دحل په نوم د( عربو دامن پـلان ) پـه نـوم یـوه طرحـه وړانـدې کـړې وه؛ پـدې طـرح کـې راغـلي و چـې کـه اسرائیل د فلسطینیانو لپـاره د ازاد فلسـطیني دولـت ومنـي او د ۱۹٦۷م کـال پـه جنـګ کـې قبضـه کـړې سیمې پرېـږدي نـو د عربو او اسرائیلو ترمنځ روابط جوړېدای شي.

همدا راز دبحرین په اړه هم همداسـې اندېښـنې موجـودې وې؛ ډېرو دا وړاند وینې کولې چې داماراتو نه پـس شـاید بحـرین ړومبنـی هغـه هېـواد وي چـې اسرائیـل پـه رسـمیت وپېـژني؛ دمتحـده امـاراتو او اسرائیلـو تـرمنځ د اوسـني تـړون درامنځتـه کېدو نه پس چې د امریکـا د بانـدنیو چـارو وزیـر پومپیـو ړومبـی اسرائیلو او بیا بحرین ته ولاړ نو دا اندېښني لاپسـې قـوي شـوې ځکه چې پومپیو د بحرین سلطان حمدبن عیسـی تـه دټـرمپ له لورې داسرائیلو دتسلیمولو غوښتنه رامخې ته کړې وه خو لـه نېکه مرغه چې دبحرین پاچا نه یـواځې دا چـې ټرمپ غوښـتنه یې رد کړه بلکې دا یې هـم وویـل چـې بایـد فلسـطین د ۱۹٦۷م کال نه وړاندې حالت ته بېرته ور وستل شي.

که نور عرب هېوادونه په خپـل پخـواني دریځ کلـک پـاتې شي شـاید فلسـطیني مسـلمانان دفلسـطین پـه یـوې کـوچنۍ برخه کې حپله واکمـې وویـني او کـه نـورو عربـو هېوادونـو او پـه ځانګړې توګه سعودي عربستان خدای مکړه د اماراتو پـه څېـر اقدام وکړ نو بیا به دا رښتیا وي چـې عربـو هېوادونـو دفلسـطین دپلورلو پرېکړه کړیده.

# د شهيد ملا صديق احمد زنداني تقبله الله

## ژوند او کارنامو ته لنډه کتنه

ليکنه: شفيق الله حسيني

ملا صديق احمد زنداني تقبله الله تعالی د ملا کاظم خان رحمه الله تعالی زوی او د ملا فقير محمد درويش ورور له نن څخه اوه څلوېښت کاله مخکې په (۱۳۹۴ هـ ق) کال چې له (۱۳۵۲ هـ ش) سره سمون خوري، د خوست ولايت، اسماعيل خېلو ولسوالي د چارګاه کلي په يوه ديندار او جهاد پاله کورنۍ کې دنيا ته سترګې وغړولې.

زده کړې: کله چې د شهيد کورنۍ له روسي اشغال وروسته پاکستان ته هجرت وکړ، نوموړی لا کشر و، او له هجرت وروسته يې څه وخت د خيبر پښتونخوا د هنګو په مفتاح العلوم کې لومړنۍ ديني زده کړې ترسره کړې، بيا يې د کاهي په سراج الاسلام کې له شيخ الحديث مولوي سميع الله راشد صيب څخه- چې هغه مهال په ياده مدرسه کې د ابتدايي کتابونو استاد و- هداية النحو او نور کتابونه وويل او له نورو استادانو يې هم استفادې وکړې، بيا يې څه وخت د ميرانشاه په منبع العلوم کې درسونه وويل.

له روسانو څخه د هيواد له ازادي وروسته يې په خوست کې هم څه درسونه ولوستل، چې ټول درسونه يې تقريبا تر څلورو، پنځو درجو وويل او د کورنيو او جهادي بوختياوو له امله يې نور درسونه نيمګړي پاتې شول.

جهاد: له دې سره چې نوموړی د کمونيستي انقلاب په مهال کشر طالب و؛ خو بيا يې هم په زړه کې جهادي جذبه پرته وه.

د قومندان رحيم الله تر مشرۍ لاندې يې د جهاد په بېلا بېلو محاذونو کې برخه اخيستې وه، دګرديز د فتحې په وخت کې له قومندان خان محمد سره ملګری و او په خوست کې د مولوي عبد الحکيم شرعي صيب د حکومت په مهال هم د نظام غړی و.

بيا چې په دې وروستيو کلونو کې د ده کشر ورور قاري نسيم احمد عمري تقبله الله تعالی شهيد شو؛ نوموړی دا شپږ کاله ان تر خپل شهادت پورې د هغه د ډلګۍ سرپرست و، هر کال به يې څلور، پنځه مياشتې په تشکيل کې تېرولې، له دښمن سره به يې په مخامخ نښتو کې هم ګډون کاوه او د جګړې په ډګر کې به يې د ملګرو ډېره ښه او کاميابه رهبري کوله، له دښمن سره د جنګ په مهال به هيڅکله نه وارخطا کېده، په ډېرو نازکو حالاتو کې به يې هم ملګرو ته په ډېر اطمينان او زړورتيا سره قومنده ورکوله.

د کاميابې قومندې يوه خاطره يې: د شهيد زنداني صيب تقبله الله تعالی د ډلګۍ يو مجاهد کيسه راته کوله چې يو وارې نوموړي شهيد او د سيمې نورو مجاهدينو په ګډه د مندوزيو ولسوالي د ورزې په سيمه کې په اربکيانو چاپه ووهله، په دې چاپه کې له دوی سره د اسلامي امارت له خوا د مندوزيو ولسوالي ولسوال صيب هم برخه اخيستې وه.

دوی هيڅ خبر نه و چې د دښمن ټانګونه يې سل متره ته رارسېدلي وو، حتمي ده چې انسان په داسې وخت کې له وارخطايي سره مخ کيږي؛ خو شهيد زنداني صيب تقبله الله تعالی يومخ ډار نه پېژانده، په دې حال کې يې - د دې په ځای چې په شاتګ وکړي- هم لومړی له دوه دريو خواوو سيمه ځارلې وه، چې که په څه ډول شونې وي، له يوې خوا په دښمن بريد وکړو او ټانګونه تر محاصرې لاندې راولو؛ خو چې ويې ليدل، د بريد ترتيب نه برابرېده؛ نو په ډېر مهارت او

پوره ډاډ سره یې ټول مجاهدین او د مجاهدینو موټر له صحنې څخه روغ رمټ راوایستل.

مسؤلیتونه: په هیواد کې د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال نوموړی د افغانستان له خوا د اسلام اباد سفارت د پاسپورټونو برخه کې کابو درې کاله دنده ترسره کړه، بیا یې د خوست ولایت د مخابراتو په ریاست کې یو نیم کال خپله دنده په مخ یووړه، بیا د خپل کشر ورور تکړه مجاهد قاري نسیم احمد عمري تقبله الله تعالی له شهادت وروسته شپږ کاله رسماً د هغه د ډلګۍ سرپرستي ورله غاړې وه او سږ کال د اسلامي امارت له خوا د خوست ولایت د صحت عمومي مسؤل هم و چې دا مسؤلیت یې هم ان د خپل شهادت تر ورځې په ډېر جدیت او پوره فعالیت سره سر ته ورساوه.

اخلاق: نوموړی د ښو اخلاقو، دیانت، تقوا، امانت، پوخ عقل، هوښیارتیا، تدبیر او قوي رایې څښتن و؛ خو بیا به یې هم هر کار له ملګرو سره تر سلا مشورې وروسته ترسره کاوه، د پنځه وخته لمانځه د جمعې ډېر پابند و، ټول ملګري او زامن به یې هم له ځان د هر وخت لمانځه له پاره جومات ته بیول، سورت یس، تبارک الذي او د حفاظت له پاره ختمونه به یې هیڅکله نه قضا کول، نوموړی په نقشبندیه طریقه کې د شیخ الحدیث خلیفه د ین محمد صیب مرید و.

نوموړی د ښه غږ څښتن هم و، کله، کله به یې له خپل مشر ورور ملا فقیر محمد درویش سره د جلسو او پیتو ډکولو په مهال بدرګه هم کوله او کله به یې د ملګرو په غوښتنه یوازې هم ترانه ویله.

له عوامو سره یې ښه راشه درشه لرله او د دوی په غم او ښادي کې به یې خامخا ګډون کاوه، له دې امله عوام ډېر ترې متاثر وو.

د ډلګۍ په مجاهدینو یې د وروڼو او زامنو غوندې شفقت کاوه، له یوه ملګري به یې هم ځان پورته نه ګاڼه، د هر یوه مشوره به یې په پوره توجه سره اورېدله، که څه هم د کشر ملګري مشوره به وه، په مجاهدو ملګرو به یې چې څومره مصرف وشو، زړه یې نه پرې بدېده، په بندیانو ملګرو یې ډېر پام کاوه، مجاهدین ملګري به یې دینداري، نوافلو، تلاوتونو او د ثواب نورو کارونو ته هڅول او په ملګرو به یې د نظامي او استخباراتي درسونو او اعداد ډېر کوښښ کاوه.

د تقوا خاطره یې: د نوموړي د سنګر ملګري وایي: موږ به چې په خوست کې کومې سیمې ته تشکیل کاوه، هغه سیمه غرنۍ وه او طبعاً د ځایي خلکو کورنۍ پرده کمزورې وه، مېرمنو ځینې له کوره باندیني کارونه هم تر سره کول، لکه: له غره څخه لرګي راوړل او نور... نو نوموړي په موږ دا لازمه کړې وه چې کله هم له مرکز نه وځو، په خپل سر به دسمالونه داسې اچوو چې په مخ مو رازوړند وي، مخامخ لاره راته ښکاري، خو ښۍ او چپې خوا ته څه شی نه ښکاري چې په پردیو مېرمنو مو نظر ونه لګیږي، نو دا بې ډېره عجیبه خاطره ده چې کله به داسې ځای ته ولاړو چې هلته به سیمیزې مېرمنې د باندنیو چارو ترسره کولو له پاره له خونو راوتلې وې، نوموړي به په ملګرو غږ وکړ: ( حجاب!) نو ټولو ملګرو به سمدلاسه په سرونو دسمالونه راواچول او یوازې مخامخ لاره به یې لیدله.

شهادت: زنداني صیب تقبله الله تعالی د شهادت ډېر تږی و، سږ کال به یې له هر ملګري سره د رابطې په وخت بیا بیا ویل: تاسې ما ته دعا وکړئ چې الله تعالی مو سترياوې ضایع نه کړي، نوموړی د روژې د میاشتې په لومړنیو ورځو کې تشکیل ته ولاړ، هلته به خپلو جهادي خدمتونو بوخت و، چې یوه ورځ د خوست ولایت د صبریو په ولسوالي کې د اسلامي امارت له خوا د صحت د مشرانو غونډه جوړه شوه او دی هم همالته وروبلل شو.

مجاهدین ملګري یې وایي: کله چې دی له موږ نه رخصتېده، له هر ملګري سره یې د اخیري خدای پاماني غوندې رخصتي واخیسته، په هماغه مهال یې په ټنډه کې سور ټاپې ښکاره شو، چې ټولو ملګرو په خپلو سترګو ولید، او ده ته یې وویل: په تندي کې دې ښه څرګنده شوه، هسې نه چې شهید شې، ده به پوره ډاډ سره ورغبرګه کړه: ملګرو! الله تعالی چې ما ته کومه مرمۍ لیکلې وي، هغه په بل چا نه لګیږي. او رخصت شو.

په دغو شپو او ورځو کې د اسلامي امارت د مجاهدينو له خوا د خوست د موسی خېلو ولسوالي تر کلکې محاصرې لاندې وه، او زنداني صيب تقبله الله تعالی چې د صحت مسؤل و، د زخميانو له پاره د بېړنيو مرستو او روغتونونو ته د لېږد په پار هماله په سيمه کې نږدې موجود و، له دغه ځايه په (۱/۱۱/۱۴۴۱ هـ. ق.) نېټه چې له (۲/۴/۱۳۹۹ هـ. ش.) سره سمون خوري، له د خپل مشر زوی او دريو نورو مجاهدينو ملګرو په ملتيا صبريو ته روان شو، په لاره کې د موسی خېلو ولسوالۍ اړوند (وايه) سيمه کې د مزدور دښمن په څلور طرفه کمين کې راګير شول، هرې خوا ته د غرو په سرونو دښمن ناست و او يوې خوا ته هم لاره نه وه، دوی له ځان سره د عوامو موټر سپېشل راوستی و، او ده له عوامو سره زياته خواخوږي لرله؛ نو زنداني صيب تقبله الله تعالی سمدلاسه له ملګرو سره يو ځای له موټره رابښکته شو او موټروان ته يې د تګ اجازه ورکړه، هغه له سيمې ژوندی ووت او دښمن پرې کار ونه لاره.

ده له خپلو څلورو واړو ملګرو سره يو ځای له پاخه سرک نه په لږ واټن سره په داسې يو خوړ کې پناه واخيسته، چې په ونو او غنو پوښل شوی و، او د خوړ يو متر لوړې ژۍ ته يې ډډه ولګوله، دښمن چې دوی تر ښار لاندې نيولي وو او ويې ليدل چې په دغه ځای کې بې درکه شول، نو دغه ځای يې د هاوانونو، غټو او وړو وسلو تر بريد لاندې ونيو او نږدې سرک ته ټانګونه هم راورسېدل او هماغه ځای يې تر اور لاندې ونيو، ده ملګرو ته وويل چې څای پر ځای غلي شئ، حرکت مه کوئ او د الله تعالی ذکر شروع کړئ. که څه هم محاصره د سهار له اته نيمو بجو د مازديګر تر څلورو بجو وغځېده؛ خو د نوموړي په بدن په نهه نيمو بجو د ټانګ د دهشکي څلور مرمۍ ولګېدې او سخت ټپي شو، سمدلاسه يې د شهادت کلمه وويله او په ملګرو يې د ايت کرسي ويلو ټينګار وکړ، همداسې د شهادت کلمې يې ويلې، او يو ساعت وروسته يې حقيقي خالق ته خپل روح وسپاره.

انا لله و انا اليه راجعون

او نور څلور واړه ملګري يې د لوی خدای د نصرت په مټ له محاصرې روغ ووتل، چې بيا د ده مبارک جسد په هماغه ماښام د کليوالو په مرسته د دښمن له سيمې انقال او مجاهدينو ته وسپارل شو.

اولاد: نوموړي شپږ اولادونه: پنځه زامن او يوه لور تر شا پرېښودل.

روح دې ښاد او ياد دې تل وي.

## د انسان بدني اعضاو په اړه مهم معلومات

• معده(Stomach) هغه وخت په تکليف وي کله چې انسان د سهار ناشته نه کوي.

• پوښتورګي (Kidneys) هغه مهال په وېره کې وي، کله چې انسان په ۲۴ ساعته کې يو ګلاس اوبه هم نه چيښي.

• تريخی(Gall Bladder) هغه وخت په مشکل کې وي کله چې انسان د شپې تر ۱۱ بجو ويدېږي نه او له لمر راختلو مخکې راپورته کيږي نه.

• کوچنۍ کولمې(Small Intestines) هغه مهال پرېشانه وي کله چې تاسې يخ مشروبات چيښئ او سړه ډوډۍ خورئ.

• غټې کولمې(Large Intestine) هغه مهال ستړي وي کله چې انسان ډېر زيات سور شوی يا مصاله لرونکی شی خوري.

سږي(Lungs) هغه وخت زيات تکليف احساسوي کله چې تاسې د سګريټ او بيړۍ له دود ډکه فضا کې سا اخلئ.

• ځيګر(Liver) هغه وخت تکليف احساسوي کله چې تاسې ډېر درانه خواړه او فاسټ فوډ ( تيار شوی خواړه) خورئ.

• زړه(Heart) هغه وخت د مشکل سره مخ کيږي کله چې انسان ډېر تريو يا ډېر کوليسټرول لرونکي خواړه خوري.

• سترګي(Eyes) هغه وخت په تکليفيږي کله چې په تياره کې پر هغوی د کمپيوټر او موبايل تېزه رڼا پرېوځي.

• دماغ(Brain) هغه مهال ډېر ستړی وي کله چې تاسې منفي فکر کوي .




## د میزان په شپږمه د کابل د فتحې د کلیزې په مناسبت

# د اســـلامي امـــارت اعـــلامیه

د میزان شپږمه نیټه زموږ د هیواد په معاصر تاریخ کې یوه مهمه او تاریخي ورځ ګڼل کیږي، د افغانستان پلازمینه کابل چې د تنظیمي جګړو پر وخت د بوږنوونکو غمیزو او بد مرغیو شاهد و د ۱۳۷۵ لمریز کال د میزان په شپږمه د اسلامي امارت د مجاهدینو په لاس فتحه او هیواد له یوه خطرناک او تباه کوونکي بحران څخه نجات وموند.

د کمونیستي رژیم له سقوط وروسته ځینې د قدرت حریصان او د کمونیستانو مؤتلفین پخپل منځ کې په جګړو واوښتل، که څه هم په دې مرحله کې په ټول افغانستان کې فساد او هرج و مرج خپور و؛ خو د فتنو او غمیزو اصلي ډګر د هیواد تاریخي پلازمینه کابل و، کابل ښار د څو مشهورو تنظیمي جګړه مارانو تر منځ تقسیم او د خپلمنځي جګړو په ډګر بدل شوی و.

په درې کلنو جګړو کې د کابل ښار له څلورو درې برخې ودانې سیمې له یوې مخې تباه او ونړیدې.

هیواد یوازې په مادي ډول نه شو تباه؛ بلکې معنوي تباهي او د تاریخي اثارو، کتابخانو او موزیمونو لوټ تالان تر دې څو برابره بوږنوونکې داستان لري، د هیواد د تجزیې نقشې تیارې شوې وې او د رڼا هیڅ څرک نه ښکاریده.

د افغانستان اسلامي امارت د تیارو په همدې اوج کې قیام وکړ، جګړه ماران یې له هیواده ورک کړل، په سمتونو تقسیم شوی هیواد یې متحد کړ، کابل یې د شر و فساد له عناصرو او لوټمارانو تصفیه کړ او د افغان ولس سر، مال او عزت یې بیرته خوندي کړ.

په همدې اساس ویلی شو چې د میزان شپږمه د سقوط، تجزیې او بربادۍ له خطر څخه د افغانستان د ژغورلو ورځ ده.

په همدې ورځ په هیواد کې د یو داسې سوچه اسلامي نظام واکمني پیل شوه چې زموږ د ملت د یو نیم میلیون شهیدانو ارمان او هدف و.

د افغانستان اسلامي امارت د دې تاریخي ورځې د رارسیدو په مناسبت خپل مظلوم او مجاهد ملت ته مبارکي وايي او زیری ورکوي چې ان شاءالله هغه ورځ رانږدې ده چې هیواد مو یو ځل بیا د یرغلګرو له وجود او د افغانستان موجوده سلطې څخه د خلاصۍ او خپلواکۍ ورځې ولري او د راتلونکي لپاره باید ټول هوډ ولرو تر څو مو ولس د یوه سوچه اسلامي نظام په نفاذ سره خپلو لوړو ارمانونو ته ورسیږي، ان شاءالله تعالی وما ذالک علی الله بعزیز

د افغانستان اسلامي امارت

۱۰/۲/۱۴۴۲ هـ ق

۲/۷/۱۳۹۹ هـ ش ـ ۲۰۲۰/۹/۲۵ م

# د بين الافغاني مذاكراتو د پیل په مراسمو کې د اسلامي امارت د مرستيال

# او سیاسي دفتر رئیس محترم ملا برادر اخند د وينا متن

الحمدلله وكفى والصلوة والسلام عليه رسوله المجتبى

امابعد: فاعوذ بالله من الشيطن الرجيم، بسم الله الرحمن الرحيم و اعتصموا بحمبل الله جمعيا ولا تفرقو (الاية) و ايضا قال الله تعالى :يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّـهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّـهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّـهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا

تر هرڅه مخکې د دې درانه مجلس ټولو ګډونوالوته ! السلام عليكم ورحمة الله وبركاته !

خوښ یم چې د افغانستان اسلامي امارت او د امريکا د متحده ایالاتو د تاریخي توافقنامې د امضاء په تعقیب سره د افغانستان څلویښت کلنې معضلې پای ته د رسولو او یو اسلامي نظام د قیام په موخه د بين الافغاني مذاكراتو د افتتاحیې غونډې ګډونوال یو .

د سولې روان بهير د دوحې د تړون په بشپړ عملي کولو سره کامیابېدلای شي .

اسلامي امارت د دوحې په تړون کې کړې ژمنې عملي کړي دي او عملي کوي يې .

همدا رنګه له مقابل لوري څخه هم په کلکه غوښتنه کوي چې په تړون کې کړې ژمنې عملي کړي، ترڅو د سولې پروسه ښه پرمخ ولاړه شي، او له خنډ او څنډ سره مخ نشي .

زه په دې مجلس کې له حاضرو دواړونو ټیمونو څخه غوښتنه کوم چې په خپلو بحثونو او پریکړو کې د اسلام د مقدس دين او هيواد لوړ منافع په نظر کې ونیسي او دغه هدف ته رسيدل باید د ډلو او ټپلو او اشخاصو تر شخصي منافعو قرباني نه کړي .

د مذاکراتو جریان به خامخا ستونزې ولري، خو غوښتنه مو داده چې بحثونه په پوره حوصله او زغم او له موضوعاتو سره د ښه تعامل په نظر کې نیولو سره پرمخ ولاړ شي .

د افغانستان اسلامي امارت خپل ځوريدلي ملت ته ډاډ او اطمينان ورکوي چې په پوره اخلاص سره به د بين الافغاني مذكراتو په جريان کې کوښښ وکړي چې خپل مسلمان ملت ته د سولې، آرامۍ او سوکاله ژوند لپاره زمینه برابره کړي .

همدا رنګه نړۍ ته اطمينان ورکوي چې پخپل توان سره به هلې ځلې وکړي ترڅو بين الافغاني مذاکرات ښه نتيجه ورکړي .

موږ غواړو چې افغانستان خپلواک، مستقل، متحد، پرمختللي او آزاد هېواد وي او يو داسې اسلامي نظام ولري چې د ولس ټولې برګنې پکښې د کوم تبعیض پرته خپل ځان ووینې او د يوبل سره د ورورۍ په فضا کې په پوره صمميت سره ژوند وکړي .

موږ غواړو چې افغانستان په آينده کې د ګاونډیو، سیمې او نورې نړۍ له هیوادونو سره مثبتې، په متقابل احترام ولاړې او ښې اړیکې ولري .

په پای کې د قطر کوربه هیواد د محترم امیر، محترم خارجه وزير، حکومت او ملت څخه او همدا رنګه د نورو هغو هیوادونو څخه چې زموږ سره يې د سولې په اړه هر اړخیزه همکاري کړې او کوي يې د زړه له کومې مننه کوم .والسلام عليكم ورحمة الله وبركاته.

ملا عبدالغني برادر

د اسلامي امارت سیاسي مرستیال او د سیاسي دفتر رئیس

۱۴۴۲/۱/۲۴هـ ق / ۱۳۹۹/٦/۲۲هـ ش / ۲۰۲۰/۹/۱۲ م

